## کلمهٔ طيبه

لکه څرنګه چې تاسې ته معلومه ده چې زمزم يوه بې ګټې اداره ده چې بغير د کوم مالي مقصدنه د اسلامي موادو په خپرولو کې د اسلامي دين د خدمت دنده مخ په وړاندې بيايي دستاسې په لاس کې رسالې نه وړاندې يې (د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه) په نوم باندې لس کتابونه د (فقهي کتابونو له پاڼو څخه) په نوم باندې يې په مختلفو موضوع ګانو کتابونه د قرآن کريم په اړه په مختلفو موضوع ګانو باندې مشتمل کتاب قرآني معلومات په علم حديث کې په سرو زرو د ليکلو وړ تصنيف (د علم حديث مطالعه) د رسول الله ♈ په زندګي او اخلاقو باندې ليکل شوی کتاب (محمد رسول الله ♈ اخلاق سيرت او لنډه پېژندنه) او داسې نور کتابونه يې چې د ليکلو ، تصنيف او ترتيب خدمات يې ټول ډاکټر مفتي کفايت الله وردګ صاحب په غاړه اخيستي دي ددې وړ نه دي چې انسان يې هېر کړي په ضمن کې چې د فقهي کتابونو له پاڼو څخه سلسله هم روانه ده او د قرآني معلوماتو په موضوع باندې بل کتاب

هم که خیر وو په نیږدي وخت کې راتلونکی دی د ډاکټر صاحب یوه بله لیکنه ستاسې تر مطالعې در رسول غواړو چې په دنیا او آخرت کې تر ټولو نه په بهترینه موضوع (لا إله إلا الله محمد رسول الله ) باندې یې کړېده سره ددې چې دا یوه داسې موضوع ده چې معلومات وربانديې ډېر زیات دي لکن مفتي صاحب ستاسې په لاس کې کتاب کې په داسې طرز او طریقه بحر په کوزه کې ځای کړی دی چې انسان ورته ګوته په غاښ کیږي پدې وړه رساله کې ئې د لا إله إلا الله محمد رسول الله تفصیلي معنی ، شرطونه، فضائل و غیره پداسې ترتیب په ځای کړي دي چې څوک یې په مطالعه شروع وکوي نو دا کتاب به پخپله اجازه ورته ورنه کړي چې تر ختمېدو وړاندې یې پرېږدي په زمزم کې ټول کارکونکي د مفتي صاحب کفایت الله پدې او په هره لیکنه ویاړي او خوشحالي ښکاره کوي چې ددي کتابونو په خدمت کې ونډه لري اوس دادي کتاب او تاسې سره پرېږدو پدې هیله چې ستاسې به خوښ شي او کله به یې هم له مطالعې څخه ستومانه نشئ .

څرنګه چې رښتیا ده چې (خُلق الانسان ضعیفاً) ددې امله که ددې او د زمزم ادارې د هرکتابې په اړه ستاسې څه ډول نیوکه ، اعتراض، مشوره، نکته ، اصلاح وي مونږ ته اجازه راکړئ چې په هغې خبر شو زمزم اداره به یې نه یوازې لتاسې څخه د کورودانې په ویلو سره واوري بلکه په راتلونکي وخت کې به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښکلا وګرځوي.

نوټ : د ادارې سره د اړیکو لپاره د ادارې د موبایل شمېره او په انټرنېټ باندې آدرس (د کتاب په اړه) معلوماتو کې لړ پورته تېرشول .

# لا الـــه الا الله

کـلمـه تـوحيد هغه مبارکه کـلمـه ده چې د انسان پـه ژونـد کې لـوی بـدلـون راولـي او همدا هغه کـلمـه ده چې هغه انسان چې د کفـر پـه تـيارو کې مړ وي د اسلام پـه رڼـا يـې را ژونـدی کـوي همـاغه کـلـمـه ده چې څوک يـې ووايـي او ايـمـان وربـانـدې راوړي پـه اسلامـي قـانـون کې يـې سر او مـال پـه امـن شي او همدا کـلمـه ده چې د مسلمـان او کـافـر پـه مـينځ کې فـرق کـوي او همدا کـلمـه ده (لا إلـه إلا الله) چې ټـولـو پـيغمبرانـو خپل قـومـونـه ورتـه را غـوښتل چې دا ووايـي او ويـې مـنـي او همدا کـلمـه د هر اسمـانـي ديـن بـنـيـاد دی د حضرت آدم ⌨ زمکې تـه تـر راښکـتـه کېدلـو وروسـتـه تـر لـسو پـېړيـو د حضرت نـوح ⌨ تـر دور پـورې پـه زمـکـه کې همدا کـلـمـه عمـلي وه او ټـولـو خلـکـو د يـو الله ➢ عبـادت کـولـو او ټـولـو د همدې پـه معـنـی (د الله ➢ نـه بـغيـر د عبـادت لائـق نـشتـه) بـانـدې يـقـيـن کـولـو چې کـلـه د نـوح ⌨ پـه قـوم کې بـت پـرسـتـي پـيدا شوه هغوی د الله ➢ سره د نـورو بـتـانـو ود، سواع، يـغوث ، يـعـوق عبـادت شروع کـړو لـکـه الله ➢ چې د حضرت نـوح ⌨ پـه واقـعـه کې فـرمـايـي :

وَ قَالُوۡا لَا تَذَرُنَّ اٰلِہَتَکُمۡ وَ لَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَّ لَا سُوَاعًا ۬ۙ وَّ لَا یَغُوۡثَ وَ
یَعُوۡقَ وَ نَسۡرًا ﴿ۚ۲۳﴾ [1]

➢ ترجمه : (کله چې نوح ⌨ ) دوی د یو الله عبادت ته را غوښتل او د بتانو له عبادت څخه یې منع کول نو) وویل (مشرانو کشرانو ته) مه پرېږدئ تاسې (عبادت د) معبودانو خپلو او مه پرېږدئ عبادت د هغه بت چې ود نومیږي او هغه چې سواع نومیږي او هغه چې یغوث یعوق او نسر نومیږي .

حضرت نوح ⌨ هغوی د الله ➢ د عذاب څخه وډار کړل او هغوی ته یې نصحتونه وکول او ډېر یې ورته وویل :

یَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ [2]

ترجمه : ای زما قومه د الله ➢ عبادت وکوئ د هغه نه بغیر ستاسې بل د عبادت لائق معبود نشته .

➢ لکن هغوی دده خبره ونه منله بالآخره الله تول غرق کړل او د زمکې مخ یې تري پاک کړو او صرف هغه کسان یې پرېښودل چې دا کلمه یې منله الله ➢ د نوح ⌨ او د هغه د قوم د آخري نتیجې په اړه فرمایي :

---

[1] سورة النوح آية ۲۳
[2] سورة الاعراف آية ٥٩

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا اِلٰی قَوۡمِهٖ فَلَبِثَ فِیۡهِمۡ اَلۡفَ سَنَةٍ اِلَّا خَمۡسِیۡنَ عَامًا ؕ فَاَخَذَهُمُ الطُّوۡفَانُ وَ هُمۡ ظٰلِمُوۡنَ (۱۴) فَاَنۡجَیۡنٰهُ وَ اَصۡحٰبَ السَّفِیۡنَةِ وَ جَعَلۡنٰهَاۤ اٰیَةً لِّلۡعٰلَمِیۡنَ (۱۵) [1]

ترجمه اوپه تحقیق سره لیږلی وو مونږ نوح قوم دده ته پس وخت یې تیر کړو په تبلیغ سره پنځوس کم زر کاله (قوم یې د دومره زیات تبلیغ سره سره هم خبره ونه منله) بیا دوی طوفان ونیول (په ډیرو اوبو کې غرق شول) پداسې حال کې چې دوی ظالمان وو او نجات ورکړو مونږ ده ته او هغه کسانو ته چې له ده سره په کښتۍ کې ختلي وو (له عذاب د طوفان څخه) نو وګرځوله مونږ دغه بېړۍ نښه د قدرت لپاره د عالمیانو.

[1] سورة العنكبوت آية ١٤ او ١٥

## د ټولو پيغمبرانو شريک دعوت

په همدې ډول حضرت هود ،صالح ،إبراهيم ،لوط او شعيب عليهم السلام او ټولو پيغمبرانو خپل قوم همدې خبرې ته را غوښتلو تردې چې د پيغمبرانو لړۍ پای ته ورسېده د ټولو په آخر کې زمونږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم وو هغه خپل قوم ته وويل :

قولوا لا إله إلا الله تفلحوا

ترجمه : لا إله إلا الله ووايا ست کاميا ب کيږئ.

او ټولو پيغمبرانو ته سخت کار هم همدا وو چې د همدې کلمې معنی (د يو الله ➢ عبادت ته) خلک تيار کړي او د نورو باطلو معبودانو د عبادت څخه خلک را وګرځوي او دا کار ځکه سخت وو چې د پيغمبر نه به وړاندې خلک د بتانو، ونو، بوټيو اور او نورو شيانو په عبادت باندې شيطان آخته کړي وو هغوی ته به يې سجدې کولې د بتانو په نوم به يې خيراتونه کول همدوی ته به يې نذرونه منل او له همدوی نه به يې په مشکلاتو کې مرسته غوښته او د همدوی نه يې غوښتل چې مشکلات ختم کړي او شيطان به ددې خلکو په ذهنونو کې ورکړي وو چې دا دوی کوم کار کوي نو ښه کوي او همداسې کول په کار دي نو ځکه به يې ويل :

أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَهًا وَاحِدًا إِنَّ هَذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ [1]

ترجمه : آیا ده ګرځولي دي دغه (۳٦۰) معبودان الله یو؟ بېشکه دغه ګرځول د ډېرو معبودانو یوه ته چې تاسې نور معبودان پرېږدئ او د یو الله عبادت کوئ خامخا یو ځیز ډېر عجیب دی . [2]

الله د دوی دا سخت انکار هم مونږ ته را نقل کوي او مونږ ته قصه کوي چې دا کفار په خپله عقیده باندې داسې سخت ولاړ وو نو پیغمبر ته به یې هر ډول خبرې کولې الله فرمایي :

اِنَّهُمۡ كَانُوۡۤا اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۙ يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ (۳۵) وَ يَقُوۡلُوۡنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوۡۤا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجۡنُوۡنٍ (۳٦) [3]

ترجمه :د هغوی دا حال وو چې کله به دوی ته ویل کېدل چې د الله نه بغیر بل د عبادت لائق معبود نشته نو دوی به کبر کولو او ویل به یې چې آیا مونږ اوس د یوه شاعر لیوني لپاره د خپلو خدایانو پرېښودونکي یو؟ [4]

نو هغه کسان چې ددې مبارکې کلمې د نور څخه بې برخې وو د خپل جهالت، ضد، کم عقلي ، ګمراهي له امله یې پیغمبر ته لېونی او شاعر وویل سره

1سورة ص آیة ٥
2 کابلی تفسیر
3 سورة الصافات آیة ۳۵ او ۳٦
4 کابلی تفسیر

ددې چې دوی پدې پوهېدل چې پيغمبر نه خو شاعر وو او نه لېونی وو

نو ريښتينی مسلمان هماغه دی چې دا کلمه يې زده وي او د همدې کلمې په معنی باندې عقيده ولري (د الله ➢ نه بغير بل څوک په حقه معبود نشته) او يوازې د الله ➢ په نوم خيراتونه او نذرونه وکوي او صرف الله ➢ ته خپل عبادتونه وړاندې کړي او پدې خبره له زړه نه پوه شي چې يوازې الله ➢ هغه ذات دی چې د عبادت وړ دی او د الله ➢ نه بغير نور ټول مخلوقات که ولي دی، که پيغمبر دی، که ملائک دي او که کاڼی بوټی او نور جمادات دي دوی د عبادت مستحق نه دي بلکه په بندګانو باندې عبادت يوازې د الله ➢ حق دی ددې امله خو الله ➢ فرمايي :

وَ قَضٰی رَبُّکَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ اِیَّاہُ 1

ترجمه : او ستا رب دا حکم کړی دی چې د هغه نه بغير به د بل چا عبادت نه کيږي .

او همدا معنی د لا إله إلا الله ده پدې کلمه کې دوه شيان دي يو نفي ددې ده چې د الله ➢ نه بغير د عبادت لا ئق نشته او بل پکې اثبات ددې خبرې دی چې يوازې الله ➢ د عبادت لا ئق دی چې کله د لا إله إلا الله نه وروسته لاشريک له راشي دا يې

[1] سورة الاسراء (بني اسرائيل) آية ٢٣

هغه د نفې طرف قوي کوي او چې ترينه وروسته وحده راشي نو دا يې هغه د اثبات طرف قوي کوي دا چې الله ➢ واحدي دی (يو دی) شريک نلري دا وحدانيت منل په بندګانو باندې د الله ➢ حق دی الله ➢ فرمايي :

ذَلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ هُوَ الْبَاطِلُ [1]

ترجمه : دا ځکه چې الله ➢ حق دی او هغه نور شيان چې کافران يې د معبود په توګه را غواړي او مني يې هغه باطل دی .

---

[1] سورة الحج آية ٦٢

# د الله په وحدانیت مختلف ډول دلائل

د الله ➢ وحدانیت منل او په هغه باندې عقیده کول چې کله الله ➢ مونږ ته په قرآن کې ثابتوي نو مختلف ډوله دلائل وړاندې زمونږ د پوهې لپاره وړاندې کوي لکه د مثال په ډول په یو دلیل کې ورته وعده ویل شوېده چې ټولو بندګانو د الله ➢ د وحدانیت د منلو وعده کړېده او کله چې د انسانانو ارواح پیدا شوي وو نو په هغه ځای کې الله ➢ د دوی نه وعده اخیستې وه چې دوی به یوازې او یوازې الله ➢ د خپل رب په توګه مني هغه واقعه الله ➢ مونږ ته داسې را په زړه کوي :

وَ اِذۡ اَخَذَ رَبُّکَ مِنۡۢ بَنِیۡۤ اٰدَمَ مِنۡ ظُہُوۡرِہِمۡ ذُرِّیَّتَہُمۡ وَ اَشۡہَدَہُمۡ عَلٰۤی اَنۡفُسِہِمۡ ۚ اَلَسۡتُ بِرَبِّکُمۡ ؕ قَالُوۡا بَلٰی ۚۛ شَہِدۡنَا ۚۛ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ اِنَّا کُنَّا عَنۡ ہٰذَا غٰفِلِیۡنَ (۱۷۲) ۙ[1]

ترجمه : او یاد کړه (ای محمده) هغه وخت چې واخیست رب ستا له بني آدمو څنې له شاګانو د دوی څخه اولاد د دوی او شاهدان یې کړل دوی ټول پر ځانونو خپلو باندې (او الله ➢ دوی ته وفرمایل) آیا نه یم زه رب ستاسې! وویل دوی

[1] سورة الاعراف آیة ۱۷۲ او ۱۷۳

(او اقرار يې وکړو) هو! (ته رب زمونږ يې ، اقرار يې وکړو په ربوبيت د الله ➢ ) ګواه کړل مونږ خپل نفسونه (ددې جهته) چې ونه وايئ تاسې په ورځ د قيامت کې چې بېشکه مونږ وو له دغه (توحيده) غافلان (نا خبره) .[1]

## اسلام دين د انسانيت اصلي فطرت

په بل ځای کې دې دين او د الله ➢ په وحدانيت باندې عقيدې ته د انسان اصلي فطرت ويل شوي دي او الله ➢ مونږ ته فرمايي چې همدا د انسانيت اصلي فطرت دی الله ➢ فرمايي :

**فَاَقِمۡ وَجۡهَکَ لِلدِّیۡنِ حَنِیۡفًا ؕ فِطۡرَتَ اللّٰهِ الَّتِیۡ فَطَرَ النَّاسَ عَلَیۡهَا ؕ لَا تَبۡدِیۡلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِکَ الدِّیۡنُ الۡقَیِّمُ ٭ۙ وَ لٰکِنَّ اَکۡثَرَ النَّاسِ لَا یَعۡلَمُوۡنَ (۳۰)**

2

ترجمه : پس برابر کړه (ای محمده!) مخ خپل دين ته په داسې حال کې چې مايل اوسې حق ته لازم ونيسي پيدائښت د الله ➢ هغه چې پيدا کړي دي الله ➢ خلق په هغه (پيدائښت) چې نشته له سره بدلول د پيدائښت (دين) د الله ➢ ته (او مه ئې بدلوئ چې شريک ورسره پيدا کړئ) دا هم هغه دين سم دی (چې هېڅ کوږ والی په هغه کې نشته)

---

1 **کابلی تفسير**

2 سورة الروم آية ۲۹

ولکن زیاتره خلق نه پوهیږي (په توحید د الله ➢ )[1]

## په مخلوقاتو کې د الله ➢ په وحدانیت دلائل

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي چې ددې خلکو لپاره چې د الله ➢ په وحدانیت په کائناتو کې مخلوقاتو کې او ددې ټولو سربېره د دوی په خپلو ځانونو کې دلائل موجود دي الله ➢ فرمایي :

سَنُرِيۡهِمۡ اٰيٰتِنَا فِى الۡاٰفَاقِ وَ فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمۡ اَنَّهُ الۡحَقُّ ؕ اَوَ لَمۡ يَكۡفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ (٥٣) [2]

ترجمه : ژر ده چې وبه ښیو دوی ته دلائل د (قدرت) خپل چې په آفاق ملکونو کې دي او په نفسونو د دوی کې دي تر هغه پورې چې ښکاره شي دوی ته چې بېشکه دغه قرآن حق دی آیا کافي نه دی رب ستا (بلکه بس او کافي دی) بېشکه الله ➢ پر هر شي شاهد او حاضر گواه دی .[3]

یعني دا قرآن چې ټول د الله ➢ د وحدانیت په دلائلو باندې ډک دی نور دلائل خو پرېږده چې اوس به مونږ منکرینو ته د دوی په اطرافو او

---

[1] ترجمه له کابلي تفسیر څخه
[2] سورة فصلت (حم السجده) آیة ٥٣
[3] کابلی تفسیر

اکنافو کې او په ټول جهان کې او بالآخره د دوی په خپلو ځانونو کې دوی ته د قدرت نښې او دلیلونه ور ښکاره کوو چې په هغو سره به د قرآن کریم حقانیت دوی ته د رڼا ورځې په څېر ورښکاره شي .

او دا دلائل څه شی دي؟ دا د اسلام هغه عظیم فتوحات وو چې په ښکاره سره بالکل نا ممکن ښکاره کېدل او په حقیقت کې د قرآن کریم د ټولو وړاندې ویلو (پیشګویانو) سره برابر وو لکه د بدر فتح چې په عقل او ښکاره سره بالکل نا ممکنه ښکاره کېده چې شاوخوا دری سوه کسان هغوی هم خالي لاس دې د کفارو مجهز او منظم د شاوخوا زرو کسانو مسلح لښکر ته شرمونکې ماتې ورکړي او بیا د مکې فتح په ښکاره سره نا ممکنه ښکاره کېده چې له مکې نه په شپه او غلا او پټه سره تللي خلک دې دومره قوت پیدا کړي چې د شرک کور د ټول عمر لپاره وران کړي او په خپلو لاسونو باندې مکه مکرمه فتح کړي او بیا دهغې نه وروسته د خلفاوو راشدینو په وخت کې شوي فتوحات چې ټولو کافرانو په خپلو سترګو ولیدل او قرآن څو کاله وړاندې ددې خبرې دوی ته کړې وې .[1]

## د الله وحدانیت یوه ټینګه د هدایت رسی

[1] کابلی تفسیر

په بل ځای کې الله ➢ په الله ➢ باندې ایمان او په وحدانیت باندې ایمان ته ټینګه د هدایت رسۍ ویلې ده او څوک چې وربانديې منګولې ولګوي نو هغه به حق ته رسیږي او دا داسې رسۍ ده چې پرې کېدل نه لري الله ➢ فرمایي :

فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى * لَا انْفِصَامَ لَهَا ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (٢٥٦) [1]

ترجمه : پس هرڅوک چې کافر (منکر) شو له (عبادت د شیطان او) بتانو او ایمان یې راوړو (یقین یې وکړو) په (وحدانیت) د الله ➢ باندې نو په تحقیق سره یې ټینګه نیولې ده کړۍ کلکه چې له سره نشته پرېکېدل هغې لره او الله ➢ ښه آوریدونکی (د ټولو اقوالو ) ښه عالم دی (په ټولو احوالو) . [2]

په آیة کې د منکر بالطاغوت معنی داد ه چې د بتانو ا و د ټولو هغه شیانو چې له الله ➢ سره په عبادت کې شریکول کیږي له هغه نه انکار وکوي او د هغه په عبادت او تعظیم باندې خپل ځان ګنده نه کړي او طاغوت هر هغه شي ته ویل کیږي چې د الله ➢ نه بغیر د هغه شي عبادت کیږي نو ټول بتان، ونې، کاڼي ، ستوري هغه معبودان

[1] سورة البقرة آیة ٢٥٦

[2] **کابلی تفسیر**

چې خلکو به د هغوی عبادت کاوه دوی به ورته خوشحاله وو لکه فرعون ، نمرود او دوی ته ورته نور دا ټول طواغیت ګڼل کیږي او هغه کسان چې څوک یې عبادت وکوي او هغه د دوی دې عبادت ته خوشحال نه وي او د هغوی دا خوښه نه وي لکه عیسی ⌨ او داسې نور نو هغوی په طواغیتو کې نه راځي ځکه هغوی نه پدې رضا وو چې د دوی عبادت وشي او نه دوی له خلکو نه غوښتي وو چې د دوی عبادت وکوي بلکه دوی خلک یوازې د الله ➢ عبادت ته را غوښتل بلکه طاغوت پدې عبادتونو کې شیطان وو چې دوی یې هڅول چې ددې خلکو عبادت وکوي.

## د توحید درې قسمونه

علماء کرام د توحید په اړه فرمایي چې توحید په درې ډوله دی :

١. توحید الربوبیة
٢. توحید الالوهیة
٣. توحید الاسماء و الصفات .

## توحید الربوبیة

توحید الربوبیة دېته ویل کیږي چې صرف او یوازې الله ➢ خپل رب ومنل شي او یوازې الله ➢ ومنل شي چې هغه ټول مخلوق پیدا کړی دی ، هغه

مالک دی ، او د هغه په لاس کې د ټولو شیانو تدبیر دی

الله ➢ په سورة الرحمن کې فرمایي :

رَبُّ الۡمَشۡرِقَیۡنِ وَ رَبُّ الۡمَغۡرِبَیۡنِ ﴿۱۷﴾ [1]

ترجمه : او دی رب د دواړو مشرقونو (لمر ختو د ژمي او اوړي دی) او رب د دواړو مغربونو (لمر پرېوتو د ژمې او اوړي دي) .

توحید الربوبیة دېته وایي چې بنده ټینګه عقیده وساتي چې الله ➢ د هرشي خالق، مالک او متصرف دی نو په توحید فی الربوبیة کې دری خبرې دي

۱. مؤمن به عقیده کوي چې څومره شیان پیدا شوي دي دا ټول الله ➢ پیدا کړي دي په پیدائښت کې بل هېڅوک ورسره شریک نشته الله ➢ فرمایي :

هَلۡ مِنۡ خَالِقٍ غَیۡرُ اللّٰهِ یَرۡزُقُکُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۫ۖ فَاَنّٰی تُؤۡفَکُوۡنَ ﴿۳﴾ [2]

ترجمه : آیا شته بغیر د الله ➢ نه بل پیدا کونکی (بلکه نشته) همدغه الله ➢ روزي در رسوي تاسې ته له اسمان نه (په سبب د باران) او له زمکې نه (په سبب د محصولاتو) نشته لائق د

---

[1] **سورة الرحمن آیة ۱۷**
[2] سورة فاطر آیة ۳

عبادت بل هېڅوک مګر هم دی دی پس له کومه لوري تاسې ګرځول کېږئ له توحید نه شرک ته ؟)

ﷲ ➢ د کفاروپه خدایانو باندې رد کوي او فرمایي :

اَفَمَنۡ يَّخۡلُقُ كَمَنۡ لَّا يَخۡلُقُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ (١٧) [1]

ترجمه : آیا هغه ذات چې هرشی پیدا کولی شي (چې ﷲ ➢ دی) په شان د هغه دي چې نشي پیدا کولی هېڅ شی (چې بتان دي) ؟ (ﷲ ➢ پیدا کول کولی شي او تاسې چې کومو شیانو ته عبادت کوئ هغه هېڅ شی نشي پیدا کولی بلکه هغه پخپله تاسې جوړ کړي دي نو آیا دا اوس تاسې ته یو ډول لائق د عبادت ښکاره کیږي؟) آیا پند نه اخلئ تاسې (چې خالق او مخلوق سره و پېژنئ او په اصلي خالق باندې ایمان راوړئ؟)

نو یو کس به هغه وخت مؤمن کیږي چې هغه ﷲ ➢ د هرشي خالق ومني او په دنیا کې چې څومره شیان دي دا به مني چې ﷲ ➢ پیدا کړي دي .

پوښتنه : کله کله خو انسانان هم یو شی جوړولی شي په یو حدیث کې هم راغلي دي چې رسول ﷲ ♈ د عکسونو جوړونکو په اړه فرمایي ﷲ ➢ به دوی ته ووایي : هغه شی چې تاسې جوړ کړي دي هغه اوس ژوندي کړئ نو رسول ﷲ ♈ هم ویلي دي (چې

[1] سورة النحل آیة ١٧

تاسې جوړ کړي دي) ... آيا دا جوړول د کوم شي خلق کول نه دي؟

ځواب : نه دا تخليق نه دی بندګان د کوم شي تخليق نشي کولی بلکه صرف د الله ➢ په مخلوقاتو کې د کوم شي شکل وربدلولی شي د مثال په ډول ترکاڼ (نجار) لاړ شي ونه را پرې کړي د هغې نه لرګی را وباسي او يو بل شکل ورته ورکړي نو مونږ ورته وايو چې مېز يې جوړ کړو همدارنګه په پورتني حديث کې چې د عکس جوړونکو په اړه راغلی دی تصوير جوړونکي هم خلق نه دی کړی صرف خټه ، يا سيمټ يا بله ماده يې را اخيستې ده شکل يې ترې جوړ کړی دی او يا يې په سپين کاغذ رنګونه ولګول او دهغه شکل يې وربدل کړو او که په اصطلاح کې اګر که د بنده جوړو شويو شيانو ته مونږ خلق وايو لکن دا په اصل کې خلق نه دی صرف تحويل (بدلول) دي .

۲. مؤمن به عقيده کوي چې الله ➢ يوازينی د هرشي مالک دی په دنيا کې چې څومره شيان دي الله ➢ يې خالق دی او هغه يې مالک دی هغه يې په خپل قدرت نسبتي اختيار په بندګانو کې يې چې چاته خوښه شي هغه ته يې ورکوي الله ➢ فرمايي :

تَبٰرَکَ الَّذِیۡ بِیَدِہِ الۡمُلۡکُ ۫ وَ ہُوَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرُۨ ۙ﴿۱﴾ [1]

---

[1] سورة الملک آية ۱

ترجمه : د برکت واله دی هغه ذات (الله ➢ ) چې د
هغه په لاس کې ملک او بادشاهي ده او هغه په
هرشي باندې قادر دی .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

**قُلْ مَنْۢ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَیْءٍ وَّ هُوَ يُجِيْرُ وَ لَا يُجَارُ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (٨٨)** [1]

ترجمه : ورته ووایه که تاسې پوهېږئ نو ماته
ووایاست چې د هرشي بادشاهي د چا په لاس کې ده
او هغه چاته پناه ورکوي او د هغه څخه هېڅوک
چا ته پناه نشي ورکولی؟
ددې او د ګڼ شمېر نورو آیتونو او دلیلونو څخه
ثابتیږي چې د هرشي اصلي مالک الله ➢ دی او ټول
موجودات د هغه دي او هماغه مقدس ذات دی چې په
مخلوقاتو کې هر ډول تصرف کولی شي او د موقت
ملکیت لپاره یې چې چاته خوښه شي هغه ته یې
ورکوي بیا په هغه شي باندې د هغه انسان داسې
ملک نه وي لکه د الله ➢ ځکه الله ➢ چې هر وخت
وغواړي له هغه څخه یې اخستلی شي او د الله ➢
څخه هېڅوک هم هېڅ شی نشي اخستلی او ډېر شیان
د الله ➢ په ملک کې دي د بندګانو په ملک کې نه
دي او د بندګانو په ملک کې چې هرشی وي هغه
بیا هم د الله ➢ دي بیا د الله ➢ تصرف په هغه

---
[1] سورة المؤمنون آیة ٨٨

کې تر انسان څخه بغیر د مقایسې نه زیات دی او بنده ته چې الله ➢ کوم مال ورکوي بیا هم بنده مجبور دی چې په هغه مال کې د الله ➢ حکمونه ومني او الله ➢ پدې اړه مختلف حکمونه کوي د مثال په ډول الله ➢ فرمایي :

وَلاَ تُؤْتُواْ السُّفَهَاء أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللّهُ لَكُمْ قِيَاماً [1]

ترجمه : او مه ورکوئ (مه سپارئ ) تاسې بې عقلانو ته مالونه خپل هغه چې ګرځولی دی الله ➢ د پاره د تاسې سبب د ګزران

نو دا حکم الله ➢ هغه انسان ته کوي چې د هغه په لاس کې مال وي هغه مال اګر که اوس دده ملک بلل کیږي لکن بیا هم په ده باندې ضروري ده چې د الله ➢ حکم به مني په همدې ډول الله ➢ مالدارنو انسانانو ته حکم کوي چې دوی د له خپلو مالونو څخه زکات ورکړي سره ددې چې هغه مالونه د دوی خپل دي لکن بیا هم په دوی باندې لازم دي چې د الله ➢ حکم به په هغه مالونو کې عملي کوي او په خلاف ددې چې الله ➢ څرنګه چې د هرشي مالک دی نو الله ➢ په هرشي باندې د هر قسم اختیار مالک دی او هېڅوک نشي کولی په هغه مال کې تصرف وکوي نو ددې نه معلومه شوه چې د

---

[1] سورة النساء آية ٥

الله ➢ ملک پوره ملک دی او په مال باندې د انسان ملک ناقص ملک دی .

۳. مؤمن به عقیده کوي چې الله ➢ یوازینی هغه ذات دی چې د دنیا د ټولو کارونو تدبیر دده په اختیار کې دی او یوازې هغه ذات دی چې د هر بدلون فیصله کوي او پدې اړه هېڅوک نه د هغه سره شریک دي او نه څوک د هغه مخه نیولی شي او نه د هغه په فیصله باندې څوک اعتراض کولی شي هرڅوک چې پدې ډول عقیده ونلري یا خو یې گمان وي چې په تدبیر کې د الله ➢ سره بل څوک شریک دي او یا یې د کوم کار په اړه عقیده وي چې دا فیصله دده لپاره بل چا کړېده او یا یې عقیده وي چې کوم ولي، زیارت ، ملایکه، نجومي یا بل څوک دده لپاره دده په راتلونکي وخت کې ښه فیصله کولی شي نو دا کس مؤمن نشي پاتې کېدلی الله ➢ فرمایي :

اَلَا لَہُ الۡخَلۡقُ وَ الۡاَمۡرُ ؕ تَبٰرَکَ اللّٰہُ رَبُّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۵۴) [1]

ترجمه : خبردار شئ چې (خاص) الله ➢ لره دي پیدا کول او امر (حکم فرمایل/ فیصله کول) لوی برکت واله دی الله ➢ چې رب (پالونکی) د ټولو عالمیانو (د جهان) دی . [2]

---

[1] سورة اعراف آیة ٥٤
[2] کابلی تفسیر

➢ الله چې په کومو شيانو کې تصرف کوي د هغه تصرف مطلق دى هېڅ قيد وربانديې نشته بندگان هم په خپلو مالونو کې تصرف کوي لکن دهغوى تصرف محدود دى ، ناقص دى ، مقيد دى ازادي پکې نشته يوازې الله ➢ دى چې هېڅوک د هغه فيصله نشي بدلولى نو ځکه به مؤمن بنده دا مني چې په هرشي کې رښتونى متصرف يوازې او يوازې الله ➢ دى او هېڅوک دده د تصرف مخه نشي نيولى نو توحيد فى الربوبية دا مطلب چې مؤمون به عقيده کوي چې په خلق، ملک او تصرف کې هېڅوک د الله ➢ سره شريک نشته .

# توحيد الالوهية

توحيد الالوهية د عبادت لپاره صرف الله ➢ خاص کولو ته وايي پدې معنی چې بنده به بل د هېچا او په هېڅ معنی عبادت نه کوي صرف د الله ➢ عبادت به کوي او هغه کسان چې رسول الله ♈ ورسره جنگونه کول او رسول الله ♈ د هغوی مالونه مسلمانانو ته حلال کړي وو او مسلمانان يې د هغوی په خلاف جهاد ته را پاڅول هغوی دا ډول توحيد نه منلو يا خو يې له سر نه الله ➢ ته عبادت نه منلو او يا يې الله ➢ هم منلو او ورسره يې نور شيان د عبادت شريکان کول او حال دا چې عبادت يوازې او يوازې د الله ➢ لپاره ښايي چا چې ټول انسانان پيدا کړي دي ټول مخلوق يې پيدا کړی دی او ټولو ژونديو شيانو ته ژوند خوراک او د ژوند اسانتياوې ورکوي نو که چا په هره معنی په هر عنوان د الله ➢ سره په عبادت کې شريک وګڼل که پيغمبر وي، که ملائک وي، که ولي وي، که زيارت وي او که هرشي نو دا سړی مؤمن نه دی نو معنی دا چې که څوک د الله ➢ په ټولو صفاتو هم اقرار وکوي او پدې هم اقرار وکوي چې په دنيا کې څومره شيان دي دا الله ➢ پيدا کړي دي او الله ➢ ته عبادت هم وکوي لکن ورسره ورسره د بل شي عبادت کوي نو بيا هم دا

کس مسلمان نه دی مشرک دی ددې ډول توحید (چې عبادت صرف الله ➢ لره په کار دی) په اړه الله ➢ فرمايي :

وَ مَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ الْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ (۵۶) [1]

ترجمه : ما پېريان او انسانان يوازې ددې لپاره پيدا کړي دي چې زما عبادت وکوي .

په بل ځای کې الله ➢ د حضرت نوح ⌨ په حکايت کې د هغه د دعوت يوه جمله را اخلي چې خپل قوم ته يې ويل :

يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ [2]

ترجمه : ای زما قومه د الله ➢ عبادت وکوئ د هغه نه بغير ستاسې لپاره بل د عبادت لائق معبود نشته .

نوح ⌨ خپل قوم د بتانو له عبادت څخه منع کولو او توحيد الالوهية لوري ته يې را بلل او هغوی ته يې ويل چې يوازې الله ➢ ستاسې د عبادت لائق دی دهغه څخه بغير بل چاته عبادت مه کوئ .

په همدې ډول د حضرت هود ⌨ قول را نقل کوي او فرمايي :

---

[1] سورة الذاريات آية ٥٦
[2] سورة الاعراف آية ٥٩

وَإِلَى عَادٍ أَخَاهُمْ هُوداً قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُواْ اللّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَـهٍ غَيْرُهُ أَفَلاَ تَتَّقُونَ [1]

ترجمه : او (لېږلی وو مونږ قوم د) عاد ته (قومي) ورور د دوی هود وویل (هود) ای زما قومه! عبادت وکوئ تاسې د الله ➢ نشته تاسې ته هېڅ (حق) معبود بغیر د الله ➢ نو آیا تاسې نه ډارېږئ (له عذابه د الله ➢ او پرهېز نه کوئ له شرکه) .

همدارنګه د حضرت صالح ⌨ په واقعه کې د هغه قول مونږ ته نقل کوي او فرمایي :

وَإِلَى ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحاً قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُواْ اللّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَـهٍ غَيْرُهُ [2]

ترجمه : او (لېږلی وو مونږ) ثمودیانو ته (قومي) ورور د دوی صالح وویل (صالح) ای زما قومه ! عبادت وکوئ تاسې د الله ➢ نشته تاسې ته هېڅ (حق) معبود بغیر ددې الله ➢ څخه .

په همدې ډول د ټولو پیغمبرانو د دعوت او تبلیغ اول ټکی همدا وو چې خلک به یې د یو الله ➢ عبادت ته را بلل الله ➢ رسول ♈ ته د نورو پیغمبرانو د تبلیغ په اړه فرمایي :

---

[1] سورة الاعراف آية ٦٥

[2] سورة الاعراف آية ٧٣

وَ مَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِکَ مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا نُوۡحِیۡۤ اِلَیۡہِ اَنَّہٗ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّاۤ اَنَا فَاعۡبُدُوۡنِ (۲۵) [1]

ترجمه : او نه وو لیږلی مونږ پخوا لتا څخه هېڅ رسول مګر چې وحی به کوله مونږ هغه ته (داسې) چې بېشکه شان دادی چې نشته بر حق معبود مګر زه یم (یوازې) نو بندګي کوئ تاسې زما .

نو ځکه همدا توحید (توحید الالوهیة) د ټولو پیغمبرانو او د هغوی د قومونو په مینځ کې د خلاف نکته وه او په همدې نکته باندې د مسلمانانو او مشرکینو په مینځ کې جنګ شوی دی او ډېر داسې کفار هم وو چې په توحید الربوبیة باندې یې یقین درلود او دا یې منل چې الله ➢ د هرشي مالک خالق او متصرف دی لکن په عبادت کې یې یا ورسره نور شریکول او یا یې بغیر د الله ➢ څخه د نورو شیانو عبادت کولو او الله ➢ ته ئې بالکل عبادت نه کولو نو بیا هم د هغه کسانو څخه وګرځېدل چې هغوی کفار وو او همېشه به په دوزخ کې وي .

حضرت یونس ⌨ خپل قوم ته په خپل تبلیغ کې ویل :

[1] سورة الانبیاء آیة ۲۵

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ یُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ ؕ مَا مِنۡ شَفِیۡعٍ اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِ اِذۡنِہٖ ؕ ذٰلِکُمُ اللّٰہُ رَبُّکُمۡ فَاعۡبُدُوۡہُ ؕ اَفَلَا تَذَکَّرُوۡنَ (۳) [1]

ترجمه : بېشكه رب ستاسې الله ➢ دى هغه (الله ➢ ) چې پيدا كړي ئې دي اسمانونه او زمكه (په كامل قدرت خپل سره) په شپږو ورځو كې بيا ئې استوى وكړه پر عرش باندې تدبير كوي د ټولو كارونو (په بالغ حكمت خپل سره) ، نشته هېڅ شفيع (چې شفاعت وكړى شي په ورځ د قيامت كې) مګر وروسته له اجازې د الله ➢ دغه الله ➢ (چې موصوف دى په دې صفاتو) رب ستاسې دى نو عبادت كوئ تاسې د هم ده ، آيا (فكر نه چلوئ) نو پند نه اخلئ .[2]

علامه ابن جرير رحمه الله ➢ ددې آية په تفسير كې فرمايي چې ددې آيت معنى داده چې هغه ذات چې پدې پورتنيو صفاتو باندې موصوف وي هغه ستاسې مولى (متصرف) دى هغه چې زمكه او اسمانونه يې په شپږو ورځو كې پيدا كړي دي همدا ددې قابل دى چې عبادت ورته وشي او هغه شيان چې تاسې يې عبادت كوئ چې نه ليدل كولى شي نه آوريدل او نه نور څه قدرت لري هغه ددې لائق نه دي چې عبادت ورته وشي نو ځكه حضرت

---

1 سورة يونس آية ۳
2 كابلى تفسير

یونس ⌨ ورته ویل دا ستاسې رب دی او همده ته عبادت وکوئ .

په بل ځای کې الله ➢ د پخوانیو قومونو په اړه او د هغوی د عاقبت په اړه فرمایي :

وَ يَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهُمۡ وَ لَا يَنۡفَعُهُمۡ وَ يَقُوۡلُوۡنَ هٰۤؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنۡدَ اللّٰهِ ؕ قُلۡ اَتُنَبِّـُٔوۡنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعۡلَمُ فِى السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ سُبۡحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ (۱۸) [1]

ترجمه : او عبادت کوي دغه (کفار) غیر له الله ➢ د هغو بتانو چې نشي رسولی هېڅ ضرر دوی ته (که یې عبادت ونه کړي) او نه نفع رسولی شي دوی ته (که ئې عبادت وکوي) او وایي دغه کفار چې دغه (بتان) شفاعت کونکي زمونږ دي په نزد د الله ➢ کې ووایه (ای محمده! دوی ته) آیا خبر ورکوئ تاسې الله ➢ ته په هغه څیز چې نه دی معلوم ده ته (نه) په اسمانونو کې او نه په زمکه کې (یعني داسې شی هېچرې نشته) الله ➢ پاک ډېر پورته دی له هغه شیانو چې شریکوی دوی (هغه له الله ➢ سره په عبادت کې) [2]

په بل ځای کې الله ➢ په آخرت کې د مشرکینو او د هغه شیانو چې دوی ئې عبادت کوي د بحث په اړه فرمایي :

---

[1] **سورة یونس آیة ۱۸**
[2] **کابلی تفسیر**

وَ يَوۡمَ نَحۡشُرُهُمۡ جَمِيۡعًا ثُمَّ نَقُوۡلُ لِلَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا مَكَانَكُمۡ اَنۡتُمۡ وَ شُرَكَآؤُكُمۡ ۚ فَزَيَّلۡنَا بَيۡنَهُمۡ وَ قَالَ شُرَكَآؤُهُمۡ مَّا كُنۡتُمۡ اِيَّانَا تَعۡبُدُوۡنَ (٢٨) [1]

ترجمه : او (ياد كړه اى محمده !) هغه ورځ چې را جمع به كړو دا خلق ټول بيا به ووايو هغو كسانو ته چې شرك ئې راوړى دى (ټينګ ودرېږئ) په ځايونو خپلو كې تاسې او (هم) شريكان ستاسې نو بېلتون به وكړو مونږ په مينځ د دوى كې او وبه وايي شريكان د دوى (دوى ته) چې نه وئ تاسې چې خاص مونږ لره به مو عبادت كاوه (په امر زمونږ سره بلكه تابع وئ تاسې د خپلې هوا).

رسول الله ♈ چې كله حضرت معاذ ❽ يمن ته لېږلو ورته ويل يې :

إنك تقدم على قوم من أهل الكتاب، فليكن أول ما تدعوهم إليه أن يوحدوا الله تعالى فإذا عرفوا ذلك، فأخبرهم أن الله افترض عليهم زكاة في أموالهم، تؤخذ من غنيهم فتُرد على فقيرهم، فإذا أقروا بذلك فخذ منهم، وتوق كرائم أموال الناس [2]

ترجمه : ته د اهل كتابو قوم ته ورځې نو اول يې دېته را غواړه چې د الله ➢ توحيد ومني كله چې پدې پوه شول نو بيا ورته خبر وركړه چې الله

[1] سورة يونس آية ٢٨
[2] رواه البخاري

➢ وربانديِ زكات فرض كړى دى د دوى په مالونو كې د دوى د مالدارانو څخه به اخستل كيږي او د دوى فقيرانو ته به وركول كيږي كله يې چې پديِ بانديِ اقرار وكولو نو بيا يې ترې واخله د خلكو د معززو مالونو څخه ځان ساته (د زكات د اخستلو په وخت كې يې غوره مالونه ورڅخه مه تولوه)

♈ حضرت معاذ ابن جبل ❽ فرمايي رسول ﷲ فرمايل : يا معاذ أتدري ما حق ﷲ على العباد؟ قلت :ﷲ ورسوله أعلم، قال :أن يعبدوه ولا يشركوا به شيئاً، أتدري ما حقهم عليه؟ قلت :ﷲ ورسوله أعلم،
قال :ألا يعذبهم [1]

ترجمه : اى معاذه ته خبر يې چې په بندګانو بانديِ د ﷲ ➢ څه حق دى؟ ما ورته وويل : ﷲ ➢ او د هغه رسول وربانديِ ښه خبر دي بيا ده راته وويل په بندګانو بانديِ د ﷲ ➢ دا حق دى چې يوازې د هغه عبادت وكوي او له ده سره شريک جوړ نه كړي او ته پوهيږې چې په ﷲ ➢ بانديِ د بندګانو څه حق دى؟ ما ورته وويل : ﷲ ➢ او د هغه رسول وربانديِ ښه خبر دي

[1] صحيح البخاري

رسول الله ♈ وويل په الله ➢ باندې د بندګانو دا حق دی چې هغه عذاب نه کړي .

## توحيد الأسماء والصفات

ددې توحيد معنی منل د الله ➢ د ټولو هغه صفاتو دي چې الله ➢ خپل ځان ته ثابت کړي وي او يا د رسول الله ♈ له لوري الله ➢ ته ثابت شوي دي چې هغه لوړ صفات او اسماء الحسنی دي دا ټول حق دي او الله ➢ په خپلو ټولو صفاتو کې بې مثاله او بې شريکه دی هېڅوک له ده سره په صفاتو کې يو شان والی او شراکت نلري او ټول د کمال صفتونه چې الله ➢ ځان ته ثابت کړي او يا د پيغمبر په ژبه الله ➢ ته ثابت شوي وي دا حق دي او ټول هغه د کمتري صفات چې الله ➢ له خپل ځان څخه نفې کړې وي او يا پيغمبر ورڅخه نفی کړې وي هغه الله ➢ ته نه دي ثابت او هغه ورڅخه نفی دي .

دا توحيد هم د يو چا د مؤمن کېدلو لپاره ضروري دی ترڅو چې دا پورتنۍ عقيده څوک ونلري هغه مؤمن نشي ګڼل کېدلی .

او پدې اړه به مؤمن انسان ډېر کوښښ کوي چې الله ➢ ته صرف هغه صفات ثابت کړي چې الله ➢ خپل ځان ته ثابت کړي وي او يا رسول الله ♈ ورته

ثابت کړي وي ددېنه بغیر به نور صفات اګر که بنده ته ښه ښکاره کیږي الله ➢ ته نه ثابتوي د مثال په ډول :

الله ➢ په قرآن کریم کې ځان ته الحی القیوم ویلي دي نو په مونږ باندې واجب دي چې مونږ ایمان راوړو چې الحی د الله ➢ نوم دی او ددې نوم چې کومه معنی ده الله ➢ ته په مکمله توګه او پداسې طور چې بل چاته نه ده ثابته هغه ته ثابته شوېده او کله هم داسې وخت نه وو چې دا اسم او دا معنی الله ➢ ته نه وو ثابت او نه به داسې وخت راشي چې دا معنی له الله ➢ نه نفی شي بلکه الحی وو او الحی دی او د همېش لپاره به وي .

علماء کرام وایي چې په ټولو علومو کې غوره علم هغه دی چې د الله ➢ له اسماء او صفاتو څخه بحث کوي او انسان ته د الله ➢ صفات ور ښیي او دهغو په مطلب او استعمال یې پوه کوي وجه یې دا ده چې دوی وایي:

١. شرف د علم په شرف د موضوع پورې وي څومره چې د یو علم موضوع (چې پدې علم کې ورڅخه بحث کیږي) د شرف شی وي همدومره به هغه علم شریف وي نو کوم علم چې د الله ➢ د صفاتو او اسماوو څخه بحث کوي د موضوع په لحاظ تر بل هر علم نه مبارک او د شرافت نه ډک علم دی .

۲. د الله ➢ په اسماء او صفاتو باندې علم فرض دی ترڅو چې د الله ➢ اسماء او صفات انسان ونشي پېژندلی نو هغه په سمه توګه په الله ➢ باندې ایمان نشي راوړلی نو هغه علم چې د الله ➢ د صفاتو او اسماوو څخه بحث کوي او دهغې معناګانې مونږ ته را ښیي دا ترټولو علومو څخه د شرافت نه ډک علم دی .

۳. ډېر خلک د الله ➢ په اسماوو او د صفاتو د غلط استعمال او له هغې نه د غلط مطلب اخستلو له امله ګمراه شوي دي نو کوم علم چې د الله ➢ د صفاتو او اسماوو څخه بحث کوي هغه ددې ګمراهي نه نجات ورکوي .

٤. په سمه توګه د الله ➢ صفات او اسماء پېژندل انسان د هغه وعید نه خلاصوي چې الله ➢ د الله ➢ په اسماوو کې ګمراه شویو خلکو ته ورکړی فرمایي :

وَ لِلّٰهِ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی فَادۡعُوۡهُ بِهَا ۪ وَ ذَرُوا الَّذِیۡنَ یُلۡحِدُوۡنَ فِیۡۤ اَسۡمَآئِهٖ ؕ سَیُجۡزَوۡنَ مَا کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ (۱۸۰) [1]

ترجمه : او خاص الله لره دي (ټول) نومونه ډېر ښه وبولئ دغه (الله ➢ ) په همغو (ښو نومونو) سره او پرېږدئ هغه کسان چې (له ډېره جهله)

---

[1] سورة الاعراف آية ۱۸۰

الحاد (کوږ والی) کوي په نومونو د الله ➢ کې زر به سزا ورکړه شي دوی ته د هغه کارونو چې دوی به کول .

پدې آیت کې الله ➢ مؤمنانو ته وایي چې الله ➢ په هغو ښو نومونو سره یاد کړئ چې الله ➢ یې لري او هغه کسان چې د الله ➢ د اسماوو او صفاتو په اړه په غلطه لاره ځي په هغوی پسې تاسې مه ورځئ هغوی په خپله لاره پرېږدئ هغوی چې څه کوي ددې سزا به مومي د الله ➢ په صفاتو او اسماوو کې د کوږ تګ مطلب دادی چې الله ➢ ته داسې یو صفت ثابت کړل شي چې اجازه یې شریعت نه وي ورکړې او یا د الله ➢ د خاص نوم او صفت اطلاق په غلط ځای کې (په غیر الله ➢ ) باندې وشي او یا د الله ➢ د مبارکو صفاتو د معنی په بیانولو کې غلط تاویل او بیان وشي او یا له ځانه الله ➢ ته نومونه پیدا کړل شي لکه یهودو چې ورته له ځانه نومونه جوړ کړي وو چې ابو المکارم (د کرمونو (عزتونو، غوره صفتونو) پلار) او یا به یې ورته ابیض الوجه ویل او عیسایانو به ورته ابو المسیح ویل او حکماوو ورته العلة الاولی ویل دا ټوله د الله ➢ په نومونو او صفاتو کې ګمراهي ده [1]

---

[1] **کابلی تفسیر**

چې انسان د الله ➢ صفات و پېژني او په مطلبونو يې ځان پوه کړي علماوو ددې لپاره څه فايدې ذکر کړې دي د مثال په ډول .

١. د الله ➢ په صفاتو او اسماوو باندې پوهېدل د الله ➢ پېژندنې ته لاره ده .

الله ➢ مخلوق ددې لپاره پيدا کړی دی چې هغه وپېژني ، عبادت يې وکوي او همدا ورڅخه غوښتل شوي دي نو د الله ➢ د صفاتو او اسماوو پېژندل او د هغې مطلبونه زده کول خپل ژوند په هغه څه کې مصرف کول دي چې د کوم شي لپاره انسان پيدا شوی دی او کله چې يو بنده غواړي چې الله ➢ و پېژني نو د الله ➢ په صفاتو او اسماوو به يې پېژني چې د مثال په ډول په قرآن کريم کې په آية الكرسي کې ياد کړل شوي دي او د سورة الحشر په آخرو آيتونو کې او په سورة الاخلاص کې او نورو مختلفو ځايونو کې ياد شوي دي .

٢. مونږ الله ➢ د هغه په صفاتو او اسماوو سره پېژندلی شو او څوک چې الله ➢ وپېژني نو د هغه زړه ته به د الله ➢ محبت ، د الله ➢ نه وېره ، په کار کې اخلاص او الله ➢ ته چې کوم عبادت کوي په هغې کې به اخلاص را پيدا کيږي او د انسان څخه همدا غوښتل کيږي .

٣. د الله ➢ د صفاتو او اسماوو په پېژندلو سره
د انسان نفس پاکيږي ځرنګه چې اسلامي شريعت
ددې لپاره راغلی دی چې د انسان اصلاح وکوي او
د يو انسان اصلاح داده چې د هغه نفس پاک شي
بيا به بدو کارونو ته او بدو اقوالو او
افعالو ته هغه نه نيږدې کيږي او د بندګي په
طريقه باندې به خپل ژوند کوي نو ځکه د الله ➢
په صفاتو او اسماوو باندې علم چې د انسان نفس
پاک کړي پدې سره انسان د خطاګانو څخه ساتل
کيږي او د الله ➢ په حضور کې دده لپاره د
اميدونو دروازې خلاصيږي په ايمان باندې
ټينګيږي او د صبر په کولو کې ورسره مرسته کوي
ځکه چې د الله ➢ د عظمت صفات ورته معلوم شي نو
په زړه کې به يې د الله ➢ عظمت او لويي ځای
ونيسي چې کله انسان د الله ➢ د رحم، جود،
احسان او نورو ديته ورته صفاتو نه په ښه توګه
خبر شي د انسان په زړه کې به د الله ➢ مينه
ځای پيدا کړی او چې کله د الله ➢ د علم ، قدرت
، حکمة او د عزت صفات او نومونه د انسان زړه
ته ورننوزي نو د انسان په زړه کې به د الله ➢
په وړاندې عاجزي راشي چې کله انسان د الله ➢
په علم، احاطة ، مراقبة او نورو صفاتو باندې
خبر وي نو چې هغه کوم کار کوي نو هروخت به

فكر كوي چې الله ➢ مې وينې نو د خپلو عملونو څارنه به كوي او چې كله د الله ➢ د غني ، لطف له صفاتو څخه انسان خبر شي نو په مشكل وخت كې به خپل ځان الله ➢ ته محتاج ګڼي او چې په كوم شي كې بنديږي الله ➢ ته به رجوع كوي .

٤ . څوك چې د الله ➢ د اسماوو او صفاتو نه خبر شي نو دا علم به انسان له ګناهونو څخه منع كوي د قهار صفت به دى پرې نه ږدي چې ګناه ته ور نېږدې شي د الله ➢ مينه به يې زړه ته ور ننوزي هغه به دى د ګناه كولو ته نه پريږدي .

٥ . رسول الله ♈ فرمايلي دي ې د الله ➢ يو كم سل نومونه دي چې څوك يې ياد كړي هغه به جنت ته ننوزي نو هغه څوك چې دا نومونه زده كړي رسول الله ♈ ورسره د جنت وعده كړېده رسول الله ♈ فرمايي :

إن لله تسعة وتسعين اسماً مائة إلا واحداً من أحصاها دخل الجنة [1]

ترجمه : بېشكه د الله ➢ نه نوي نومونه دي چا چې دا ياد كړل الله ➢ به يې جنت ته ننباسي

امام ابن قيم رحمه الله ددې حديث په تفسير كې ليكلي دي چې ددې (احصاها (ياد يې كړل) ټكي لپاره درې مرتبې دي.

---

[1] رواه البخاري

لمړی مرتبه: د الله ➢ نومونه یادول

دوهمه مرتبه : په معنی یې ځان پوه کول

دریمه مرتبه : دعا وربانديې کول لکه الله ➢ چې فرمایي :

**وَلِلَّهِ الأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا** [1]

بېشکه د الله ➢ لپاره نېک نومونه دي هغه وربانديې و بولئ .

بنده چې کوم صفت الله ➢ ته ثابتول غواړي نو له خپله ځانه به يې ورته نه ثابتوي بلکه شريعت ته به ګوري او شريعت د هر صفت په اړه له دريو حکمونو څخه يو حکم ورکوي .

١. اثبات
٢. نفی
٣. توقيف

## ١. اثبات

يعني ټول هغه اسماء او صفات به الله ➢ ته ثابتوي چې کوم الله ➢ په خپل مقدس کتاب کې ځان ته ثابت کړي دي او يا رسول الله ♈ ورته ثابت کړي وي په هغې کې به هېڅ ډول تغير او تبديل او تحويل نه کيږي او نه به په هغه صفت کې له کوم شي سره مشابهت کول وي .

[1] سورة الاعراف آية ١٨٠

٢. نفی

ټول هغه صفات چې الله ➢ په قرآن کريم کې له خپل ځان څخه نفی کړې وي او يا رسول الله ♈ له الله ➢ څخه نفی کړې وي بنده به يې هم له الله ➢ څخه نفی کوي او نه به يې ورته ثابتوي دا به هغه صفات وي چې ددې ضد الله ➢ ته ثابتيږي او که دا ورته ثابت شي د الله ➢ د کوم صفت سره يې ټکر راځي او د الله ➢ د کمال سره به منافي وي نو ځکه ټول د نقص صفات له الله ➢ څخه منفي دي د مثال په ډول الله ➢ ته يو صفت ثابت دی ان الله على کل شئ قدير نو ددېنه وروسته چې د عجز (عاجز والي) صفت راځي هغه به مونږ په کلکه سره ترېنه منفي کوو په پورتني يو مثال کې تېر شول چې ا لله ځان ته په قرآن کريم کې په آية کرسي کې الحی صفت ثابت کړی دی نو اوس به ورته د موت صفت په هېڅ صورت نه ثابتيږي همدارنګه الله ➢ په آية کرسي کې له ځان څخه د خوب صفت نفی کړی دی نو هېڅ وخت نشي ورته ثابت کېدلی او که څوک يې ثابت کړي نو دا نا روا ده په آية کرسي کې الله ➢ فرمايي : **لا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلا نَوْمٌ** ( نه نيسي ده لره پرکالي (پرموښي) د خوب (يعني نه راځي پر الله ➢ د خوب پرکالي

(پرموښي)) او نه په خپله خوب همدارنګه الله ➢
په سورة ق کې له خپل ځان څخه ستړیا او
ستوماني نفی کوي نو په هېڅ صورت کې ورته
ثابتول روا نه دي هلته الله ➢ فرمايي :
وَ لَقَدۡ خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ مَا بَیۡنَہُمَا فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ ٭ۖ وَّ مَا مَسَّنَا
مِنۡ لُّغُوۡبٍ (۳۸)

ترجمه : او په تحقیق پیدا کړي دي مونږ
اسمانونه او زمکه او هغه نور مخلوقات چې په
مینځ ددغو (اسمانونو او زمکه) کې دي په شپږو
ورځو کې او نه وه رسېدلې مونږ ته هېڅ ډول
ستوماني .[1]

۳. توقف

ځینې داسې صفات دي چې شریعت ثابت کړي دي لکن
په کیفیت کې یې توقف (درېدل) دي لکه استوی
علی العرش ، ید (لاس) لرل او داسې نور نو پدې
کې به بنده هم توقف کوي او وړاندې به نه ځي
چې یا یې د استواء څرنګوالی او یا یې د لاس
څرنګوالی ښکاره کړي.

## د دریو واړو قسمونو شریک دلائل

[1] کابلی تفسیر

د قرآن کریم په اول سورت سورة فاتحه کې دری واړه قسمونه توحید ثابت شوی دی هلته الله ➢ فرمایي :

الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ

ترجمه : حمد ثنا صفت دی الله ➢ لره چې رب د ټول عالم دی .

دا په توحید فی الربوبیة باندې دلیل دی او پدې آیت کې الله ➢ د ټول عالم لپاره رب ثابت شوی دی او څوک چې پدې باندې عقیده او یقین ونلري مؤمن نشي کېدلی .

بیا الله ➢ فرمایي :

الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ. مَالِكِ يَومِ الدِّينِ

ترجمه : ډېر زیات مهربان او پوره رحم لرونکی دی .

پدې کې توحید الاسماء و الصفات ثابت شوی دی الله ➢ ته پدې آیتونو کې د الرحمن او الرحیم او مالک صفتونه ثابت شول

بیا وروسته الله ➢ فرمایي :

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ

ترجمه : یوازې تاته مونږ عبادت کوو او لتا څخه کمک غواړو .

پدې آیت کې عبادت کول الله ➢ ته خاص کړل شوي دي پدې کې توحید الالوهیة ثابت شوی دی

همدارنګه د قرآن کریم په وروستني سورت سورة الناس کې هم درې واړه ډوله توحید ثابت شوی دی هلته الله ➢ فرمايي :

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ

ترجمه : ووايه چې زه پناه غواړم په رب د خلکو باندې

پدې آیت کې توحید الربوبیة ثابت شوی دی

بیا الله ➢ فرمايي :

مَلِكِ النَّاسِ

ترجمه : د خلکو بادشاه (مالک) دا توحید الاسماء و الصفات دی

بیا الله ➢ فرمايي :

إِلَٰهِ النَّاسِ

ترجمه : د خلکو معبود دا توحید الالوهیة دی .

په قرآن کریم کې اول اواز چې خلکو ته شوی دی هلته هم خلک دوه ډوله توحید ته را غوښتل شوي دي الله ➢ فرمايي :

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ رَبَّكُم

ترجمه : ای خلکو عبادت وکوئ د خپل رب .

دلته ټول خلک چې په هغه وخت کې درې ډلې وو او په مخکې آیتونو کې اشارې ورته تېرې شوې دي مسلمانان، منافقان او کافران الله ➢ خپل عبادت یعني توحید الالوهیة ته را وغوښتل او توحید الربوبیة یې وربانديې دلیل راوړو چې دا

خبره ښه ښکاره شي چې همدا یو ذات د رښتوني
عبادت قابل دی او ویې فرمایل :

**الَّذِیۡ خَلَقَکُمۡ وَ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِکُمۡ لَعَلَّکُمۡ تَتَّقُوۡنَ ﴿۲۱﴾ الَّذِیۡ جَعَلَ لَکُمُ الۡاَرۡضَ فِرَاشًا وَّ السَّمَآءَ بِنَآءً ۪ وَّ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخۡرَجَ بِہٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزۡقًا لَّکُمۡ ۚ فَلَا تَجۡعَلُوۡا لِلّٰہِ اَنۡدَادًا وَّ اَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۲﴾** [1]

ترجمه : هغه رب چې پیدا کړي ئې یئ تاسې او (پیدا کړي ئې دي) هغه کسان چې وو پخوا له تاسې نه لپاره ددې چې تاسې ځان وساتئ (له عذاب د الله ➢ ) هغه رب چې ګرځولې یې ده تاسو ته زمکه فرش او ګرځولی یې دی اسمان چت او نازلې کړې ئې دي له (طرفه) د اسمانه اوبه پس را ویستي یې دي پدې اوبو سره له هر ډول (قسم) میوو څخه روزي تاسې ته نو مه ګرځوئ له الله ➢ تعالی سره شریکان حال دا چې تاسې پوهیږئ (چې الله ➢ شریک نه لري) .

پدې آیت کې ټول یاد شوي کارونه هغه څه دي چې یوازې الله ➢ د هغه په کولو باندې قادر دی نو چې الله ➢ داسې قادر او توانا ذات دی نو یوازې د هغه عبادت کول په کار دي او یوازي د هغه سره ښایي چې بندګان ورته عبادت وکوي نو دا دوه آیتونه د توحید په دوو ډولونو توحید

[1] سورة البقرة آیة ۲۱ او ۲۲

الالوهية او توحيد الربوبية باندې پدې ډول دليل شول چې په يو (توحيد الالوهية) باندې الله ➢ امر وكولو او دوهم (توحيد الربوبية) يې وربانده دليل كړو په بل ځاى كې الله ➢ فرمايي چې ما انسانان او پېريان يوازې د توحيد الالوهية د پر ځاى كولو يعني يوازې عبادت كولو لپاره پيدا كړي دي الله ➢ فرمايي :

وَ مَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ الْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ (۵۶) [1]

ترجمه : ما پېريان او انسانان يوازې ددې لپاره پيدا كړي دي چې زما عبادت وكوي .

نو د الله ➢ د توحيد نه مطلب دا چې په دې دريو واړو (پورته يادو شويو) ډولونو به الله ➢ واحد منل كيږي او په هيڅ اړخ كې به بل څوك ورسره شريک نه منل كيږي او كه پدې پورتنيو دريو اړخونو كې څوک په هر اړخ كې هر ډول شريک ومني هغه كس بيا مؤمن نه ګڼل كيږي او ترڅو پورې چې يو څوک په سمه توګه مؤمن نشي كه هغه په عبادتونو ، خيراتونو او نورو نېكو كارونو كې هرڅو كوښښ كوي نو ده ته هيڅ فايده نه كوي الله ➢ فرمايي :

---

[1] سورة الذاريات آية ٥٦

لَيۡسَ الۡبِرَّ اَنۡ تُوَلُّوۡا وُجُوۡهَكُمۡ قِبَلَ الۡمَشۡرِقِ وَ الۡمَغۡرِبِ وَ لٰكِنَّ الۡبِرَّ مَنۡ
اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ الۡمَلٰٓئِكَةِ وَ الۡكِتٰبِ وَ النَّبِيّٖنَ [1]

ترجمه : نه ده نيکي (يوازې دا کار) چې وګرځوئ مخونه خپل په مانځه کې د مشرق يا مغرب لوري ته و لکن غوره نيکي د هغه چا ده چې ايمان يې راوړی وي په پاک الله ➢ او ايمان يې راوړی وي په ورځ د آخرت او په ټولو پرښتو او په ټولو کتابونو او ايمان يې راوړی وي په ټولو انبياوو .

د رسول الله ♈ په زمانه کې منافقينو هم کلمه ويله او له مسلمانانو سره په عباداتو کې هم شريک کېدل چې په سر کې يې عبد الله بن ابی بن سلول وو الله ➢ د هغوی په اړه فرمايي :

اِنَّ الۡمُنٰفِقِيۡنَ فِى الدَّرۡكِ الۡاَسۡفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ وَ لَنۡ تَجِدَ لَهُمۡ نَصِيۡرًا (١۴۵) ۙ [2]

ترجمه : بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ) او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (له عذابه خلاصونکی)

## د لا إله إلا الله په معنی کې د علماوو اقوال

---

[1] سورة البقرة آية ١٧٧
[2] سورة النساء آية ١٤٥

د لا إلـه إلا الله نـه د الله ➢ وحدانـيت او د غيـر الله
➢ نـه د عبـادت نفـي كـول علمـاوو پـه خپلـو مـختلفـو طريـقـو سره بـيـان كـړي دي او ددې كـلمې معنـى يـې پـه خپلـو تـحقـيقـي الـفـاظو كـې اداء كـړېده زه يـې مشت نـمونـه خروار ستـاسې مطـالـعې تـه اېـږدم .

امـام الـوزيـر أبـو الـمظفـر رحمـه الله پـه الإفـصاح كـې فـرمـايـلـي دي :

قـولـه : شهـادة أن لا إلـه إلا الله يـقـتـضي أن يـكـون الـشاهد عـالـماً بـأنـه لا إلـه إلا الله، كـمـا قـال تـعـالـى: فَاعْلَمْ أَنَّهُ لا إله إلا الله (سورة محمد) 19]

تـرجمـه : ددې ګـواهـي وركـول چې لا إلـه إلا الله ددې تـقـاضا كـوي چې ددې ګـواهـي وركـونـكى بـايـد پـدې خبـره بـانـدې پـوه وي (يـعنـي دعلم سره يـې وايـي) لـكـه الله ➢ چې پـه قـرآن كـريـم كـې پـه سورة مـحمد كـې فـرمـايـي : پـدې پـوه شه چې بـېشكـه لائـق د عبـادت نـشتـه مـګر يـوازې الله ➢ دى

امـام ابـن قـيـم رحمـه الله فـرمـايـي : هـذه أعظم كـلـمة تـضمـنت بـالـوضع نـفـي الإلـهـيـة عمـا سوى الله وإثـبـاتـهـا لـه بـوصف الاختـصاص فـدلالـتـهـا عـلـى إثـبـات إلـهـيـتـه أعظم من دلالـة قـولـنـا : (الله إلـه) ولا يـستـريـب أحد فـي هذا الـبـتـة

تـرجمـه : دا لـويـه كـلـمه ده چې پـه خپـلـه وضع كـې د الله ➢ نـه بـغيـر بـل چاڅخه د الـهيت پـه نـفـي بـانـدې

مشتمله ده او الله ➢ ته يې په اثبات باندې د وصف خاص په توګه مشتمله ده نو که ددې په ځای دا ويل شوي وای چې (الله اله = الله ➢ معبود دی) نو دومره ښه دلا لت ئې نشوای کولی لکه لا إله إلا الله چې کړی دی او پدې خبره کې د هيچا شک نشته بالکل .

امام قرطبي د لا إله إلا الله په تفسير کې ليکلي دي چې (لا معبود الا هو) يعني د الله ➢ نه بغير بل هيڅ معبود نشته (چې رښتيا د معبود کيدلو وړتيا ولري)

صاحب الکشاف امام زمخشري فرمايي: الإله من أسماء الأجناس کالرجل والفرس، يقع على کل معبود بحق أو باطل، ثم غلب على المعبود بحق.

ترجمه : دا اله لفظ له اسماء الاجناس څخه دی (له هغه نومونو څخه دی چې د کوم شي لپاره استعماليږي) لکه سړی آس او داسې نور ..

په اصلي معنی کې په هر معبود (هغه شي چې عبادت يې کيږي) صادقيږي هغه که رښتونی وي او که باطل معبود وي بيا وروسته يې په عرف کې استعمال په حق معبود کې زياد شوی دی (نو په کلمة التوحيد کې چې مونږ وايو لا اله نو معنی يې ده په حقه معبود نشته بيا ورپسې

➢ وایو الا الله یعني په حقه معبود یوازې الله دی) .

امام ابن رجب فرمایي : (الإله) هو الذي يطاع ، هيبة له وإجلالاً، ومحبة وخوفاً ورجاء، وتوكلاً عليه، وسؤالاً منه ودعاء له، ولا يصلح هذا كله إلا الله عز وجل، فمن أشرك مخلوقاً في شيء من هذه الأمور التي هي من خصائص الإلهية كان ذلك قدحاً في إخلاصه في قول (لا إله إلا الله) وكان فيه من عبودية المخلوق بحسب ما فيه من ذلك

ترجمه : اله هغه څوک وي چې د هغه اطاعت کیږي دهغه د هیبة (رعب) له امله د هغه د لوړ شان له امله د هغه سره د مینې له امله د هغه څخه د ویرې له امله د هغه لور ته د امید له امله او په هغه باندې د توکل له امله او د هغه نه د سوال له امله ا و د هغه په وړاندې د دعا له امله او دا ټول صرف د الله ➢ په شان کې صحیح دي بل څوک داسې نشته چې پدې ډول یې اطاعت وکول شي نو هغه چا چې څوک له مخلوقاتو نو له ده سره پدې کارونو کې شریک کړل هغه چې د معبود کېدلو له خصوصیاتو څخه دي نو دا داغ دی دده د کلمې (لا إله إلا الله) د ویلو په اخلاص کې او په ده کې به د مخلوق بندګي وي په څومره اندازه چې ده کوم مخلوق په پورتني صفاتو کې د الله ➢ سره شریک کړی وي (یعني که په پورتنیو

صفاتو کې څوک هم څه شی د الله ➢ سره شریک وګڼي دی په هغه اندازه کې په شرک کې دی ځومره یې چې دا د شرک عقیده وي) .

امام بقاعي فرمایي : لا إله إلا الله، أي انتفاء عظيماً أن يكون معبود بحق غير الملك الأعظم، فإن هذا العلم هو أعظم الذكرى المنجية من أهوال الساعة، وإنما يكون علماً إذا كان نافعاً، وإنما يكون نافعاً إذا كان مع الإذعان والعمل بما تقتضيه، وإلا فهو جهل صرف

ترجمه : لا إله إلا الله یعني په لوړه سطحه باندې نفي کول ددې خبرې دي چې څوک د بغیر د الله ➢ نه معبود شي پس بېشکه دا علم (دا عقیده چې څوک هم د الله ➢ نه بغیر په حقه سره معبود نشي کېدلی) دا ډېر لوی هغه پند دی چې د قیامت د ورځې له مصیبتونو څخه انسان خلاصولی شي او دیته به علم په هغه وخت کې وویل شي چې فایده وکوي او فایده به په هغه وخت کې وکوي چې د پوره یقین سره وي او څه چې غواړي په هغه باندې عمل وشي او که چېرته انسان دا کلمه ووایي (لا إله إلا الله) او پوره یقین یې وربانډې نه وي او یا دا چې دا کلمه څه غواړي په هغه باندې عمل ونشي نو دا بیا نه علم دی او نه فایده کوي او نه د آخرت په مشکلاتو کې مرسته کوي بلکه دا بیا خالص جهل او نا پوهي ده .

## د لا إله إلا الله شرطونه

كلمة التوحيد هغه مباركه كلمه ده چې په دنيا او آخرت كې د انسان د نيكبختي سبب ګرځي او په دنيا كې د مسلمانانو څخه د انسان د سر او مال ساتنه كوي او په آخرت كې انسان جنت ته ننباسي او د دوزخ له عذابه يې ساتي لكن څرنګه چې په آخرت كې حساب كتاب ټول د الله ⮘ سره وي څوك چې د زړونو په هر راز باندې پوهيږي نو ځكه صرف په خوله باندې تلفظ كفايت نه كوي بلكه ددې لپاره شرطونه دي چې كله هغه پوره شي نو بيا د انسان د نېكبختي او كاميابي ذريعه ګرځي او هغه شرطونه علماوو په لاندې توګه نقل كړي دي .

## لمړى شرط علم

په كلمه توحيد كې دوه شيان دي يو نفى (نشته په حق معبود بغير د الله ⮘ څخه) او بل اثبات دى (الله ⮘ يوازينى معبود برحق دى) د لا إله إلا الله نه وروسته چې كله وحده راځي دا يې هغه د اثبات طرف قوي كوي او چې كله تريېنه وروسته لا شريك له راځي نو دا يې هغه د نفى طرف قوي كوي د لا إله إلا الله په شرطونو كې لمړى شرط دادى چې انسان پدې دواړو اړخونو باندې پوه وي هم به يې د نفى په معنى او هم به يې د اثبات په معنى باندې علم وي الله ⮘ هم امر كوي چې پدې باندې پوه شه الله ⮘ فرمايي :

فَاعۡلَمۡ اَنَّہٗ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ

ترجمه : نو پوه شه (ای مخاطبه) شان دادی چې نشته هېڅ برحق معبود مګر یوازې الله ➢ دی .
په پورتني آیة کې په (فاعلم) لفظ کې هر مخاطب ته خطاب دی چې باید ځان پدې پوه کړي او که چېرته خطاب رسول الله ♈ ته شي نو بیا به یې معنی دا وي چې په همدې علم باندې ټینګ اوسه .[1]

د حضرت عثمان ❽ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : من مات وهو یعلم أنه لا إله إلا الله دخل الجنة
ترجمه : څوک چې پداسې حالت کې مړشي چې هغه پدې پوه وي چې نشته لائق د عبادت مګر یوازې الله ➢ دی نو دی به جنت ته ننوزي .

## دوهم شرط یقین

د کلمې د ویلو سره به وربان‍دې یقین هم لري چې دا رښتیا ده داسې یقین چې هېڅ ډول شک ورسره ملګری نه وي او د هر ډول شک څخه خالي وي او که یې په خوله څوک وایي او په زړه کې یې پوره یقین وربان‍دې نه وي نو بیا هم دا کس مؤمن نه ګڼل کیږي الله ➢ فرمایي :

---

[1] کابلی تفسیر

اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ ثُمَّ لَمۡ يَرۡتَابُوۡا وَ جٰهَدُوۡا بِاَمۡوَالِهِمۡ وَ اَنۡفُسِهِمۡ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوۡنَ (١٥) [1]

ترجمه : بېشکه چې (صادقان) مؤمنان هغه کسان دي چې ايمان يې راوړی دی په الله ➢ او په رسول د دغه (الله ➢ ) باندې بيا شک نه کوي (په ايمان کې) او جهاد کوي دوی په مالونو خپلو سره (چې لګوي يې په اعلاء د کلمة الله کې) او په ځانونو خپلو سره چې جهاد کوي په لاره د الله ➢ کې دا کسان هم دوی رښتيني دي (په دعوا د ايمان کې)

يعني د رښتيني مومن شان داسې وي چې په الله ➢ او د هغه په رسول باندې پوره ايمان او پوخ اعتقاد ولري او پدې کې هېڅ شک ونلري او که پدې لاره کې ورته د څه قرباني ضرورت وي نو په هر ډول يې ترېنه نه دريغوي . [2]

نو په پورتني ايت کې د رښتيني مؤمن کېدلو لپاره يې دا شرط کړل چې شک به پکې نه کوي او که چېرته يې شک وي او پوره يقين يې نه وي نو هغه کسان رښتيني مؤمنان ندي بلکه هغوی منافقان دي الله ➢ د هغوی په اړه فرمايي :

[1] سورة الحجرات آية ١٥

[2] کابلی تفسير

اِنَّمَا يَسۡتَاۡذِنُکَ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ الۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ ارۡتَابَتۡ قُلُوۡبُهُمۡ فَهُمۡ فِىۡ رَيۡبِهِمۡ يَتَرَدَّدُوۡنَ (۴۵) [1]

ترجمه : بېشکه همدا خبره ده چې اجازه غواړي له تا نه (ای محمده! د جهاد نه د تلو څخه د پاتې کېدلو) هغه کسان چې ايمان نه لري (په پټه) په الله ➢ او په ورځ د آخرت باندې (چې قيامت دی) او چې شکمن دي زړونه د دوی (د دين په حقانيت کې) نو دوی په شک خپل کې سرګردان او متحير دي .

يعني د جهاد څخه د ځان د پاتې کولو او ځان ساتلو دود او عادت د هغه کسانو دی چې د الله ➢ په وعدو باندې يقين نه لري او د آخرت د ژوند په اړه يې شک وي او هغه وعدې چې الله ➢ يې له مسلمانانو سره کوي يا په دنيا کې د ښکاره فتح او يا په آخرت کې د جنت نو دوی هغو وعدو ته د شک په نظر ګوري.

نو دا کسان د رسول الله ♈ په وخت کې منافقين وو الله ➢ په سورة المنافقين کې د دوی په اړه فرمايي :

لَا تَعۡتَذِرُوۡا قَدۡ كَفَرۡتُمۡ بَعۡدَ اِيۡمَانِكُمۡ ؕ اِنۡ نَّعۡفُ عَنۡ طَآئِفَةٍ مِّنۡكُمۡ نُعَذِّبۡ طَآئِفَةًۢ بِاَنَّهُمۡ كَانُوۡا مُجۡرِمِيۡنَ (۶۶) [2]

---

[1] سورة التوبة آية ٤٥
[2] سورة التوبة آية ٦٦

ترجمه : اوس عذرونه مه وړاندې کوئ تاسې له ايمان څخه بېرته کافران شوي ياست که په تاسې کې مونږ کومه ډله معاف کوو نو بلې ډلې ته به سزا ورکوو ځکه هغوی مجرمان دي .

د حضرت ابي هريره ❽ څخه روايت دی رسول الله ♈ فرمايي : أشهد أن لا إله إلا الله وأني رسول الله ♈ , ولا يلقى الله بهما عبد غير شاك فيهما إلا دخل الجنة

ترجمه : زه ددې ګواهي ورکوم چې لائق د عبادت نشته مګر يوازې الله ➢ دی او دا چې زه د الله ➢ رسول يم هر بنده چې د الله ➢ سره ددې کلمې سره مخامخ شي او شک يې پکې نه وي نو هغه به جنت ته ننوزي .

په پورتنيو آيتونو او حديثونو کې ښکاره کيږي چې په لا إله إلا الله باندې ايمان وي او بيا ورسره شک نه وي نو جنت ته به ننوزي نو چې کله شرط موجود نشي (شک پيدا شي) نو بيا د جنت ذمه واري ورته نشته .

## دريم شرط القبول (منل)

د لا إله إلا الله دريم شرط دادی چې دا کلمه د کوم شي تقاضا کوي هغه به په زړه او خوله سره مني (چې د الله ➢ وحدانيت د الله ➢ او د رسول الله ♈ اطاعت دی) او الله ➢ مونږ ته په قرآن کريم بيا بيا دهغه کسانو د هلاکت واقعې بيانوي چې

➢ هغوی ددې کلمې د منلو څخه سر غړولی وو الله فرمایي :

وَ كَذٰلِكَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ فِیۡ قَرۡیَةٍ مِّنۡ نَّذِیۡرٍ اِلَّا قَالَ مُتۡرَفُوۡهَاۤ ۙ اِنَّا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا عَلٰۤی اُمَّةٍ وَّ اِنَّا عَلٰۤی اٰثٰرِهِمۡ مُّقۡتَدُوۡنَ (٢٣) قٰلَ اَوَ لَوۡ جِئۡتُكُمۡ بِاَهۡدٰی مِمَّا وَجَدۡتُّمۡ عَلَیۡهِ اٰبَآءَكُمۡ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ بِهٖ كٰفِرُوۡنَ (٢٤) فَانۡتَقَمۡنَا مِنۡهُمۡ فَانۡظُرۡ كَیۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُكَذِّبِیۡنَ (٢٥) [1]

ترجمه : او همداسې (ستا په شان) نه وو لېږلي مونږ پخوا له تا نه په هېڅ قریه کې کوم وېروونکی (له عذابه یعني نبي) مګر وبه ویل هوسا (آرام) او نعمت لرونکیو (خلکو د هغه کلیو) بېشکه مونږ چې یو موندلي مو دي پلرونه خپل پر یوې لارې او بېشکه مونږ پر قدمونو د دوی اقتداء کونکي تلونکي یو و به ویل (نبي دوی لره) آیا (کوئ تاسې متابعت د پلرونو خپلو) اګر که راتله کړي دي ما تاسې ته په ښه لاره له هغه شي څخه چې موندلي دي تاسې پر هغه شي باندې پلرونه خپل وبه ویل دوی بېشکه په هغه (دین) چې لیږلی شوي یئ تاسې مونږ په هغه کافران یو پس انتقام مو واخیست له دوی نه پس وګوره چې څرنګه وو عاقبت آخره خاتمه د دروغ ګڼونکیو (انبیاوو خپلو لره).

[1] سورة الزخرف آية ٢٣ تر ٢٥

پدې آيت کې هغه کسان رسول الله ♈ ته ور په ياد کړل شوي دي چې هغوی د خپل وخت نبي ته ويلي وو چې تا مونږ ته کوم شی راوړي مونږ هغه نه قبلوو چې هغه د لا إله إلا الله کلمه ده نو الله ➢ فرمايي چې بيا مونږ د دوی نه انتقام واخيست يعني هغوی هلاک شول .

قرآن کريم چې مونږ ته د پخوانيو امتونو د هلاکت قصه کوي نو په کوم ځای کې چې کفار هلاکيږي هلته هغه کسانو ته الله ➢ نجات ورکوي چې هغوی دا مبارکه کلمه منلې وي لکه الله ➢ چې فرمايي :

ثُمَّ نُنَجِّیْ رُسُلَنَا وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كَذٰلِکَ ۚ حَقًّا عَلَیْنَا نُنْجِ الْمُؤْمِنِیْنَ ٪(۱۰۳)[1]

ترجمه : بيا نجات ورکړ مونږ رسولانو زمونږ ته او هغو کسانو ته چې ايمان ئې راوړی وو هم داسې (چې نجات مو ورکړ مونږ هغوی ته) ثابته ده په مونږ باندې (تلطفاً دا چې) خلاصوو (نور) مؤمنان (هم)

يعني هماغسې له پخوانيو قومونو سره زمونږ عادت جاري وو چې مکذبين به مو هلاکول او انبياوو او مؤمنانو ته به مو نجات ورکولو همداسې به د موجوده وو او وروسته راتلونکو قومونو په اړه زمونږ رويه وي چې مونږ به

---

[1] سورة يونس آية ۱۰۳

مؤمنانو ته نجات ورکوو په آخرت کې له سخت اوره او په دنیا کې د کفارو له ظلمونو څخه لکن شرط به یې دا وي چې دوی به داسې رښتوني مؤمنان وي لکه په پخوانیو امتونو کې به چې پیغمبر او دهغه سره مسلمانان شوي کسان وو.[1]

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِکَ رُسُلًا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ فَجَآءُوۡہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ فَانۡتَقَمۡنَا مِنَ الَّذِیۡنَ اَجۡرَمُوۡا ؕ وَ کَانَ حَقًّا عَلَیۡنَا نَصۡرُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۴۷) [2]

ترجمه : او خامخا په تحقیق لیږلي وو مونږ پخوا له تا (ای محمده! نور) رسولان په طرف د قومونو د دوی ته پس راغلل (دغه رسولان) دوی ته په معجزو ښکاره وو (د قدرت) پس بدل واخیست مونږ له هغه کسانو چې کافران شول (نو دوی مو هلاک کړل او مؤمنانو ته مو نصرت ورکړو) او دی حق (تفضلاً) په مونږ نصرت د مؤمنانو .

پدې آیت کې هم الله ➢ ښکاره کړه چې له پخوا څخه عادت داسې روان دی چې الله ➢ له مکذبینو او کافرانو او مجرمانو (هغه چې د الله ➢ کلمه د وحدانیت نه قبلوي او ایمان نه را وړي) څخه ضرور انتقام اخلي او هغه کسان چې رښتیني

---

[1] کابلی تفسیر

[2] سورة الروم آیة ٤٧

مؤمنان دي هغوی ته په دښمنانو باندې نصرت او کامیابي ورکوي .[1]

په بل ځای کې الله ﷻ مونږ ته ښيي چې په آخرت کې به د مؤمنانو او کافرانو سره څه کیږي الله فرمايي :

اُحۡشُرُوا الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا وَ اَزۡوَاجَهُمۡ وَ مَا كَانُوۡا يَعۡبُدُوۡنَ (٢٢) مِنۡ دُوۡنِ
اللّٰهِ فَاهۡدُوۡهُمۡ اِلٰى صِرَاطِ الۡجَحِيۡمِ (٢٣) وَ قِفُوۡهُمۡ اِنَّهُمۡ مَّسۡئُوۡلُوۡنَ (٢٤) مَا
لَكُمۡ لَا تَنَاصَرُوۡنَ (٢٥) بَلۡ هُمُ الۡيَوۡمَ مُسۡتَسۡلِمُوۡنَ (٢٦) وَ اَقۡبَلَ بَعۡضُهُمۡ
عَلٰى بَعۡضٍ يَّتَسَآءَلُوۡنَ (٢٧) قَالُوۡۤا اِنَّكُمۡ كُنۡتُمۡ تَاۡتُوۡنَنَا عَنِ الۡيَمِيۡنِ (٢٨)
قَالُوۡا بَلۡ لَّمۡ تَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ (٢٩) وَ مَا كَانَ لَنَا عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ بَلۡ
كُنۡتُمۡ قَوۡمًا طٰغِيۡنَ (٣٠) فَحَقَّ عَلَيۡنَا قَوۡلُ رَبِّنَاۤ اِنَّا لَذَآئِقُوۡنَ (٣١)
فَاَغۡوَيۡنٰكُمۡ اِنَّا كُنَّا غٰوِيۡنَ (٣٢) فَاِنَّهُمۡ يَوۡمَئِذٍ فِى الۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُوۡنَ
(٣٣) اِنَّا كَذٰلِكَ نَفۡعَلُ بِالۡمُجۡرِمِيۡنَ (٣٤) اِنَّهُمۡ كَانُوۡۤا اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَاۤ اِلٰهَ
اِلَّا اللّٰهُ يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ (٣٥) وَ يَقُوۡلُوۡنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوۡۤا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجۡنُوۡنٍ
(٣٦)[2]

ترجمه : (او به فرمايي الله ﷻ ملائکو ته چې) را ټول کړئ تاسې هغه کسان چې ظلم ئې کړی وو (په ځانونو خپلو په انکار او په شرک سره) او (کافرانې) ښځې (یا شطانان ملګري) د دوی او

---

[1] کابلی تفسیر
[2] سورة الصافات آية ٢٢ تر ٣٦

هغه چې وو دوی چې عبادت به ئې کاوه (د بتانو) بې له الله ➢ پس روان کړئ برابر کړئ دوی لارې د دوزخ ته (او دوزخ ته ئې ورسوئ) او ودروئ دوی (په دغې لارې کې) بېشکه دوی پوښتېدل شي (يعني ترې پوښتنه کيږي د اقوالو او افعالو د دوی) څه وجه ده چې مرسته او مدد نه کوئ يو له بل سره (په خلاصي کې لکه چې مرسته به مو کوله په دنيا کې) (هېڅ نشي کولی) بلکه دوی نن ورځ پخپله خپل ځانونه تسليموي (او ذليل) دي. او مخ به وګرځوي ځينې د دوی پر ځينې نورو (کشرانو او مشرانو) پوښتنه به کوي دوی يو له بله و به وايي (کشران مشرانو ته) چې بېشکه تاسې وئ تاسې (په دنيا کې) چې راتلئ به مونږ ته له جانبه د قسم (يا زور او قوت) و به وايي (متبوعان تابعانو ته نه داسې نه ده) بلکه نه وئ تاسې پخپله ايمان راوړونکي او نه وو مونږ ته پر تاسې باندې هېڅ زور او تسلط بلکه وئ تاسې يو قوم سر کښه (له حده وتونکي زمونږ په شان) پس ثابته شوه پر مونږ خبره د رب زمونږ بېشکه مونږ خامخا څکونکي يو (د عذاب) پس ګمراه موکړئ تاسې بېشکه (لکه) چې مونږ وو ګمراهان نو (فرمايي الله ➢ ) پس بېشکه چې دوی نن ورځ په عذاب کې سره شريکان دي بېشکه مونږ همداسې (لکه چې له دوی سره مو وکړل) کوو له ټولو مجرمانو سره بېشکه دوی وو

كله چې به وويل شول دوی ته چې نشته بل بر حق معبود هېڅوک مګر يوازې الله ➢ دی نو تکبر به کاوه دوی (له ويلو د کلمې نه يا کبر او لويي کوي دوی په دې بلونکي باندې) او وايي (دغه منکران) چې آيا بېشکه مونږ خامخا پرېښودونکي يو د خدايانو خپلو د پاره د يو شاعر ليوني . يعني د دوی کبر او غرور ددې مانع شوی وو چې دوی د نبي دعوت ومني او د دوی کبر دوی ددېنه منع کول چې مبارکه کلمه لا إله إلا الله ومني نو ځکه اوس دوی ته عذاب ورکول کيږي نو د عذاب د ورکولو لامل او سبب دا شو چې دوی د لا إله إلا الله د منلو څخه د کبر له امله انکار کولو

## څلورم شرط الانقياد (غاړه کېښودل)

د لا إله إلا الله څلورم شرط دادی چې دیته به انسان تابع کیږي او دیته به غاړه ایږدي او خپل ځان به ورته تسلیم کوي او صرف هغه کارونه به کوي چې ددې مبارکې کلمې تقاضا وي او کوم کارونه چې ددې مبارکې کلمې د مقتضیاتو سره مخالف وي هغه به پریږدي الله ➢ ټولو انسانانو ته امر کوي چې خپل رب ته د راجع شي او هغه ته د تسلیم سرونه ښکته کړي الله ➢ فرمایي :

وَ اَنِيۡبُوۡۤا اِلٰى رَبِّكُمۡ وَ اَسۡلِمُوۡا لَهٗ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّاۡتِيَكُمُ الۡعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنۡصَرُوۡنَ (۵۴) [1]

ترجمه : او بېرته وګرځئ تاسې رب خپل ته (له شرکه او له عصیانه) او غاړه کېږدئ ده ته پخوا له هغه چې راشي تاسې ته عذاب بیا به مدد درسره نشي کولی (په دفع د عذاب کې)

الله ➢ انسانانو ته د توبې خواته توجه ورکوي یعني الله ➢ انسانانو ته وایي چې په خپلو تېرو غلطیو باندې پښېمان شئ د کفر او عصیان لاره پرېږدئ الله ➢ ته توجه وکوئ او د الله ➢ احکامو ته د عاجزي سره غاړه کېږدئ اوس چې ستاسې په مخه کې وخت شته ددې څخه ګټه واخلئ

[1] سورة الزمر آیة ٥٤

که اوس الله ➢ ته تابع نه شئ او هغه ته انقیاد ونه کوئ او هغه ته تسلیم نه شئ نو چې کله دربانديې عذاب راشي بیا به هېڅوک ددې قابل نشي چې لتاسې سره مرسته وکوي او هېڅوک ستاسې فریاد بیا نشي آورېدلې .

پدې آیت کې الله ➢ انسانانو ته حکم وکولو چې دوی د الله ➢ ته تابع او تسلیم شي او د هغه په وړاندې دې غاړه کیږدي او د آیت په آخر کې یې ور په یاد کړل چې کله دربانديې د الله ➢ عذاب راشي بیا څوک درسره مرسته نشي کولی نو معنی دا چې هرڅوک اوس الله ➢ ته خپل ځان تسلیم کړي هغه ته به نجات ور ورسیږي او که چېرته اوس ځان تسلیم نه کړي داسې وخت به وربانديې راشي چې عذاب به پرې راشي او هېڅوک به یې بیا مرسته نشي کولی .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

**وَ مَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَ هُوَ مُحْسِنٌ وَّ اتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَ اتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا (١٢٥)** [1]

ترجمه : او څوک دي ډېر غوره له جهته د دین له هغه چا چې ایښي ئې وي مخ خپل (یا تندی او یا ځان خپل) (خاص حکم د) الله ➢ ته حال دا چې دی نیکو کار وي او متابعت یې کړی وي د ملت (دین)

[1] سورة النساء آية ١٢٥

د ابراهيم حال دا چې دی حنيف وو (مائل وو له باطله حق ته) او نيولی دی الله ➢ ابراهيم دوست (خاص خپل) .

الله ➢ په ښکاره طريقه سره فرمايي چې په ديانت او دين داري کې له داسې سړي سره څوک مقابله نشي کولی چې هغه د الله ➢ له حکمونو څخه غاړه نه غړوي او د زړه له اخلاصه په نېکو کارونو پسې ګرځي په رښتيا سره د حضرت ابراهيم ⌨ د دين او ملت متابعت کوي چې هغه له ټولې دنيا سره خپل تعلق ختم کړی او يوازې له الله ➢ سره يې خپل تعلق جوړ کړی وو او الله ➢ هم هغه په خپله دوستي سره غوره کړی وو نو دا دری واړه صفتونه

۱. چې الله ➢ ته يې خپل ځان تسليم کړی وي .
۲. نېک کارونه کوي او په نېکو کارونو پسې ګرځي .
۳. د ابراهيم ⌨ د دين او ملت متابعت کوي ددې کسانو سره هېڅوک هم په ديانت کې مقابله نشي کولی او دا په رښتيا سره د الله ➢ غوره بندګان دي .

په بل ځای کې الله ➢ فرمايي :

وَ مَنۡ یُّسۡلِمۡ وَجۡہَہٗۤ اِلَی اللّٰہِ وَ ہُوَ مُحۡسِنٌ فَقَدِ اسۡتَمۡسَکَ بِالۡعُرۡوَۃِ الۡوُثۡقٰی ؕ وَ اِلَی اللّٰہِ عَاقِبَۃُ الۡاُمُوۡرِ (٢٢) [1]

ترجمه : او هرڅوک چې وسپاري مخ (ځان) خپل الله ➢ ته (او په هغه باندې توکل وکوي) پداسې حال کې چې دى نيکو کار وي نو په تحقيق سره ده منګولې خښې کړې دي په کړئ مضبوطه او سخته باندې او خاص الله ➢ لره ده خاتمه د ټولو کارونو .

يعني هغه چا چې په اخلاص سره د نيکي لاره غوره او اختيار کړه او خپل ځان يې الله ➢ ته وسپاره نو وپوهيږه چې خپل لاس يې په ډېرې مضبوطې او کلکې کړئ لګولى دى او ځان يې پرې ټينګ کړى دى نو ترڅو چې ده پدې باندې منګولې لګولې وي (الله ➢ ته تابع ا و نيکو کار وي) نو دى به ګمراه نه شي او د همدې نيولې کړئ په واسطه به الله ➢ ته رسيږي او الله ➢ چې د ټولو کارونو د خاتمو مالک دى هغه به دده خاتمه ورته ښکلې کړي .

په همدې آيت پسې په بل آيت کې الله ➢ د کفارو په اړه فرمايي چې تاسې (اى مسلمانانو) خپله علاقه او تعلق له الله ➢ سره محکم وساتئ او

[1] سورة لقمان آية ٢٢

كفار چې دلته راشي نو بيا به مونږ ورته ټولې خبرې وكوو الله ➢ فرمايي :

وَ مَنۡ كَفَرَ فَلَا يَحۡزُنۡكَ كُفۡرُهٗ ؕ اِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ فَنُنَبِّئُهُمۡ بِمَا عَمِلُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ (٢٣) [1]

ترجمه : او هرڅوک چې كافر شو پس نه دي خفه كوي تا (اى محمده!) كفر دده (ځكه چې) خاص مونږ ته دي بيا راتلله د دوى په قيامت كې پس خبر به كړو مونږ دوى په هغه اعمالو چې كړي ئې دي بېشكه چې الله ➢ ښه عالم دى په هغه خبرو چې په سينو (د دوى) كې دي .

الله ➢ د هغه كسانو په اړه چې الله ➢ ته خپل ځان نه تسليموي او انقياد نه كوي رسول الله ♈ ته وفرمايل چې څوک انكار كوي نو ته وربانډې پروا مه كوه دوى يو داسې ځاى ته را روان دي چې دلته به مونږ ورته ټولې د دوى كړي عملونه په مخ كې كيږدو او له مونږ نه دلته دوى هيڅ شى نشي پټولى الله ➢ په هغه كارونو هم خبر دى چې دوى يې كوي او دا خو لا پرېږده هغه چې د دوى په سينو كې دي په هغه باندې هم خبر دى .

په ورپسې آيت كې الله ➢ هغه څه هم ښكاره كړل چې له دوى سره به يې كوي او فرمايي :

نُمَتِّعُهُمۡ قَلِيۡلًا ثُمَّ نَضۡطَرُّهُمۡ اِلٰى عَذَابٍ غَلِيۡظٍ (٢٤) [1]

[1] سورة لقمان آية ٢٣

ترجمه : نفع به ورکړو مونږ دوی ته (په دنیا کې) لږ بیا راولو دوی په ډیره نا چاري او عاجزي سره په طرف د عذاب سخت (د دوزخ) .

یعني الله ➢ فرمایي چې د لږو ورځو مهلت مونږ دوی ته ورکوو د یو څو ورځو بیغمي او مزې دي چې دوی خوند تري اخلي کله ئې چې دا وخت پوره شي نو بیا به پداسې حالت کې عذاب ته را کش کیږي چې د دوی په اختیار کې به هیڅ تېښته او د الله ➢ له عذابه د ځان خلاصولو لاره نه وي .

---

[1] سورة لقمان آية ٢٤

## پنځم شرط الصدق (رښتینولي)

د لا إله إلا الله پنځم شرط دادی چې انسان یې پداسې توګه ووایي چې په خوله یې وایي او زړه یې تصدیق کوي او په زړه کې پدې عقیده کوي چې دا رښتیا ده داسې نه چې په خوله خو کلمه وایي او په زړه کې دا وي چې دا دروغ دي نو که د چا په زړه کې داسې وي نو صرف د کلمې په داسې توګه ویلو باندې څوک نه مؤمن کیږي الله ➢ فرمایي :

اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْا اَنْ يَّقُوْلُوْا اٰمَنَّا وَ هُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ (٢) وَ لَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَ لَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ (٣) [1]

ترجمه : آیا ګمان کوي دا خلق ددې چې پرې به شودی شي دوی (په) همدې قدر چې ووایي دوی چې ایمان راوړی دی مونږ حال دا چې دوی به ونه ازمویل شي؟ او خامخا په تحقیق ازمویلي وو مونږ هغه کسان چې له دوی نه مخکې وو پس خامخا معلوم به کړي الله ➢ (په علم ظاهري سره هم) هغه کسان چې رښتیني دي (په دعوه د ایمان کې) او خامخا معلوم به کړي الله ➢ هغه دروغجنان (په علم ظاهري سره) .

په پورتنیو آیتونو کې الله ➢ فرمایي چې ایمان داسې اسان کار نه دی چې صرف په خوله د کلمه

---

1 سورة العنکبوت آیة ٢ او ٣

وویله شي آیا دا خلک څه ګمان کوي چې دوی به صرف کلمه ووایي او بیا به په دوی څه امتحان ددې لپاره نه را ځي چې رښتوني او درواغ جن پکې معلوم شي؟ دوی د دا ګمان نه کوي په دوی به ددې لپاره خامخا امتحانونه راځي چې رښتوني مؤمنان له درواغجنو څخه بېل کړي بیا الله ➢ فرمایي چې د دوی څخه وړاندې هم هغه کسان چې مؤمنان وو په امتحان کې اچول شوي وو ترڅو هغه کسان چې رښتوني دي ښکاره شي له هغه کسانو څخه چې صرف په خوله باندې کلمه وایي او په زړه کې یې تصدیق نه کوي په بخاري شریف کې حدیث دی چې کله د مکې د مشرکانو ظلمونه په مسلمانانو باندې زیات شول نو صحابه راغلل رسول الله ♈ ته یې وویل چې مونږ ته دعا وکوه او د الله ➢ نه راته مرسته وغواړه تکلیفونه او د کفارو ظلمونه ډېر زیات دي رسول الله ♈ ورته وفرمایل چې لتاسې څخه به وړاندې یو ژوندی مسلمان په زمکه کې خښول کېدو او په سر به ورته اره کېښودله کېده او مکمل به اره کېدو او د وسپنو په ګمنځ باندې به یې ځان ګمنځ کېدو چې غوښه او هډوکې به یې سره بېل شول یعني غوښه به یې له هډوکو څخه د وسپنې په ګمنځ باندې و ګرول شوه لکن بیا به هم هغه په خپل ایمان باندې ټینګ ولاړ وو.

د رسول الله ﷺ په زمانه کې منافقین هغه کسان وو چې په خوله به یې د مؤمنانو سره کلمه ویله لکن په زړه کې به یې وربانديې تصدیق نه کاوه او له زړه څخه یې نه منله الله ﷻ د هغه کسانو په اړه فرمايي :

وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ یَّقُوۡلُ اٰمَنَّا بِاللّٰہِ وَ بِالۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ مَا ہُمۡ بِمُؤۡمِنِیۡنَ ۘ(۸) یُخٰدِعُوۡنَ اللّٰہَ وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا ۚ وَ مَا یَخۡدَعُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَہُمۡ وَ مَا یَشۡعُرُوۡنَ ؕ(۹) فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ ۙ فَزَادَہُمُ اللّٰہُ مَرَضًا ۚ وَ لَہُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌۢ ۬ۙ بِمَا کَانُوۡا یَکۡذِبُوۡنَ (۱۰)وَ اِذَا قِیۡلَ لَہُمۡ لَا تُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُوۡنَ (۱۱) اَلَاۤ اِنَّہُمۡ ہُمُ الۡمُفۡسِدُوۡنَ وَ لٰکِنۡ لَّا یَشۡعُرُوۡنَ (۱۲) [1]

ترجمه : او ځینې له خلکو هغه څوک دي چې وايي ایمان راوړی دی مونږ په الله ﷻ او په ورځ وروستئ (چې قیامت او د جزا وخت دی) حال دا چې نه دی دوی مؤمنان (یعني د زړه له کومي یې ایمان نه دی راوړی او په خوله کلمه وايي په زړه کې وربانديې تصدیق نه کوي دوی یوازې په ژبه باندې د مسلمانانو د تېر ایستلو لپاره کلمه وايي او ځانونه مسلمانان ښکاره کوي) ټګي کوي دی (په خپل ګمان) له الله ﷻ سره او له هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی حال دا چې نه کوي ټګي دوی مګر له خپلو ځانونو سره

[1] سورة البقرة آیة ۸ تر ۱۲

حال دا چې دوی شعور نه لري (او نه پوهيږي چې ددې ټګي ضرر همدوی ته رسيږي). (يعني د دوی دا ټګي نه د الله ➢ سره چليږي ځکه هغه په غيبو باندې هم خبر دی او د دوی ټګي په مسلمانانو هم څه اثر نه اچوي ځکه چې هغوی د خپل پيغمبر له خوا پدې خبريږي چې دا د دوی ټګي ده نو ددې ټګي نقصان بېرته دوی ته ور ګرځي لکن دوی د خپل جهالت له امله ددې احساس نشي کولی) د دوی په زړونو کې بيماري (د شک او نفاق) ده نو زياده کړه الله ➢ دوی لره بيماري او مقرر دی دوی ته دردناک عذاب په سبب ددې چې دوی په درواغ ويل (په ښکاره کولو د ايمان خپل کې)

د منافقينو په اړه الله ➢ په مختلفو ځايونو کې آيتونه نازل کړي دي په سورة بقرة کې په سورة آل عمران کې په سورة توبة کې او همدارنګه په سورة المنافقون کې او داسې نور ...

د حضرت معاذ ابن جبل ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ د لا إله إلا الله په ژبه د ويلو سره د تصديق په اړه فرمايل: ما من أحد يشهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا عبده ورسوله صدقا من قلبه إلا حرمه الله على النار

ترجمه: هرڅوک چې ددې ګواهي ورکړي چې د الله ➢ نه بغير بل لائق د عبادت نشته او محمد د هغه

بنده او رسول د ی دا ګواهي د زړه د اخلاص نه وركړي او په زړه كې هم د زړه نه د همدې ګواهي تصديق وكوي نو الله ➢ به يې په اور باندې حرام كړي .

په حديث كې په ښكاره ډول سره تصريح شوېده چې د زړه نه د تصديق سره ګواهي وركړي معنى دا چې تش په ژبه باندې ګواهي ددې ضمانت نه وركوي چې په دوزخ به يې حرام كړي .

## شپږم شرط الإخلاص

د لا إله إلا الله شپږم شرط اخلاص دى پدې معنى چې خپل ټول عملونه به له شرك او د شرك له شك او شبه نه خالي او پاك ساتل كيږي الله ➢ فرمايي :

أَلا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ [1]

ترجمه : واورئ خبردار اوسئ خاص الله ➢ لره دى دين (او طاعت) خالص .

پدې آيت كې الله ➢ په ښكاره سره يو ډول اعلان كوي چې خبردار الله ➢ ته صرف هغه بندګي او عبادت قبول دي چې خالص د هغه لپاره وي هغه عمل چې له اخلاص نه خالي وي هغه عبادت چې اخلاص پكې نه وي هغه د الله ➢ دربار ته د قبول ځاى ته نه رسيږي .

په بل ځاى كې الله ➢ فرمايي :

---

[1] سورة الزمر آية ٣

وَ مَاۤ اُمِرُوۡۤا اِلَّا لِیَعۡبُدُوا اللّٰہَ مُخۡلِصِیۡنَ لَہُ الدِّیۡنَ ۬ۙ حُنَفَآءَ وَ یُقِیۡمُوا الصَّلٰوۃَ وَ یُؤۡتُوا الزَّکٰوۃَ وَ ذٰلِکَ دِیۡنُ الۡقَیِّمَۃِ ؕ(۵) [1]

ترجمه : حال دا چې امر (حکم) نه وو ورکړل شوی دوی ته په تورات او انجیل کې مګر ورکړی شوی وو چې عبادت وکوي دوی د الله ➢ په داسې حال کې چې خالص کونکی وي الله ➢ لره دین له شرکه او نفاقه په داسې حال کې چې را ګرځېدونکی وي له باطله حق ته (په لاره د ابراهیم ⌨ پس څرنګه کافر کیږي په محمد باندې؟) او (بل دوی مامور دي په دې چې) قائموي سم اداء کوي (سره له ټولو حقونو) مونځ او ورکوي زکواة او دا (مامور به شیان) دین دی محکم (مستقیم چې هېڅ کوږوالی پکې نشته) .

په پورتني آیت کې الله ➢ فرمایي چې دوی به د واحد الله ➢ بندګي پداسې توګه کوي چې په هغې کې به پوره اخلاص لري .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي :

قُلۡ اِنِّیۡۤ اُمِرۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ اللّٰہَ مُخۡلِصًا لَّہُ الدِّیۡنَ ﴿ۙ۱۱﴾ [2]

ترجمه : ووایه (ای محمده! دوی ته) بېشکه زه چې یم امر (حکم) کړی شوی دی ماته ددې چې

[1] سورة البينة آية ٥
[2] سورة الزمر آية ١١

عبادت وکوم یوازې د الله ➤ چې خالص کونکی یم ده ته (د) خپل دین (او د خپلې بندګي)

په همدې سورت کې الله ➤ لږ وړاندې بیا فرمایي :

قُلِ اللّٰهَ اَعۡبُدُ مُخۡلِصًا لَّہٗ دِیۡنِیۡ (۱۴)[1]

ترجمه : وو ایه (ای محمده!) زه الله ➤ ته عبادت کوم په دې حال چې خالص کونکی یم ده ته (د) دین خپل (له شرکه)

په بل ځای کې الله ➤ د منافقینو په اړه فرمایي :

اِنَّ الۡمُنٰفِقِیۡنَ فِی الدَّرۡکِ الۡاَسۡفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ وَ لَنۡ تَجِدَ لَہُمۡ نَصِیۡرًا (۱۴۵) اِلَّا الَّذِیۡنَ تَابُوۡا وَ اَصۡلَحُوۡا وَ اعۡتَصَمُوۡا بِاللّٰہِ وَ اَخۡلَصُوۡا دِیۡنَہُمۡ لِلّٰہِ فَاُولٰٓئِکَ مَعَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ ؕ وَ سَوۡفَ یُؤۡتِ اللّٰہُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۱۴۶)[2]

ترجمه : بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ) او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (چې دوی له عذابه خلاص کړي) مګر هغه کسان چې توبه وباسي (له نفاقه) او اصلاح کړي (اعمال خپل) او منګولې خښې کړي په دین د الله ➤ او خالص کړي دین خپل (له ریا او خلکو ته له ښودنې) خاص الله ➤ لره نو دغه (توبه ویستونکي ، د خپلو اعمالو اصلاح کونکي،

[1] سورة الزمر آية ١٤
[2] سورة النساء آية ١٤٦

د الله ➢ په دین منګولې لګونکي، او په اعمالو کې اخلاص کونکي )به وي له مؤمنانو سره (په دنیا آو آخرت کې) او زر به ورکړي الله ➢ (ټولو) مؤمنانو ته په دنیا او آخرت کې ثواب ډېر لوی .

په پورتنیو آیتونو کې الله ➢ وویل چې منافقین به په ډېره ښکته طبقه د اور کې وي او له هغه ځای څخه یې هېڅوک هم نشي راویستلی نو مسلمانانو ته په کار ده چې د هغوی له حالت څخه پند واخلي او په کومو خبرو کې چې منافقان آخته دي پاک مسلمانان باید پکې اخته نشي او بیا په منافقانو کې هم که څوک توبه وباسي او خپل عملونه الله ➢ لره خاص کړي او د الله ➢ په غوره دین باندې کلکې منګولې ولګوي نو بیا هم دوی لکه مسلمانان داسې دي او د هغوی ملګري دي په دنیا او آخرت کې او زر ده چې دوی ته به الله ➢ د دوی د عملونو اجر ورکړي .

د بخاري شریف په حدیث کې د حضرت ابي هریره ❽ څخه روایت دی رسول الله ♈ فرمایي : أسعد الناس بشفاعتي من قال لا إله إلا الله خالصا من قلبه أو نفسه .

ترجمه : زما په شفاعت باندې نېکبخت انسان هغه دی چې په اخلاص سره ووایي دا چې نشته په حقه معبود مګر یو ازې الله ➢ دی .

په بخاري شريف کې بل حديث د حضرت عتبان بن مالک ❽ نه روايت شوی چې رسول الله ♈ فرمايل : إن الله حرم على النار من قال لا إله إلا الله يبتغي بذلك وجه الله عز وجل.

ترجمه : الله ➢ په اور باندې هغه څوک حرام کړي دي چې هغه لا إله إلا الله ووايي او پدې سره د الله ➢ رضا غواړي .

په ترمذي شريف کې د حضرت ابي هريره ❽ بل روايت دی هغه فرمايي : رسول الله ♈ فرمايل : ما قال عبد قط لا إله إلا الله مخلصا إلا فتحت له أبواب السماء حتى تفضي إلى العرش ما اجتنبت الكبائر .

هېڅ بنده په اخلاص سره لا إله إلا الله نه دي ويلي مګر دا چې هغه ته د اسمان دروازې خلاصې شوي دي تردې چې عرش ته ورسيږي ترڅو يې د لويو ګناهونو څخه ځان ساتلی وي .

## اوم شرط المحبة (مينه)

د لا إله إلا الله اوم شرط محبت دی چې ددې ويونکی به يې لدې کلمې ، ددې کلمې د مقتضياتو، ددې کلمې د نورو ويونکو او مسلمانانو سره لري او هغه کسان چې ددې کلمې په خلاف دي ، کفار دي ، ددې کلمې په خلاف کار کوي او دا کلمه يې نه خوښيږي د هغوی سره به مينه او محبت نه کوي د

هغه کسانو په اړه چې هغوی د الله ➢ نه بغیر د نورو شیانو سره زیاته مینه کوي الله ➢ فرمایي :

وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ یَّتَّخِذُ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَنۡدَادًا یُّحِبُّوۡنَهُمۡ کَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَ لَوۡ یَرَی الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡۤا اِذۡ یَرَوۡنَ الۡعَذَابَ ۙ اَنَّ الۡقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِیۡعًا ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ شَدِیۡدُ الۡعَذَابِ (۱۶۵) [1]

ترجمه : او ځینې له خلکو څخه هغه څوک دي چې نیسي بې له الله ➢ څخه شریکان (په عبادت کې) چې مینه کوي دوی په هغوی باندې لکه چې مینه کوي په الله ➢ او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی ډېر ټینګ دي له جهته د مینې له الله ➢ سره او که ویني هغه کسان چې ظلم یې کړی دی (په خپلو نفسونو په شرک سره) په هغه وخت کې چې ویني دوی عذاب چې بیشکه قوت خاص الله ➢ لره دی ټول او بېشکه چې الله ➢ سخت عذاب ورکونکی دی (نو د بتانو عبادت به یې نه کاوه) .

په پورتني آیت کې الله ➢ د رښتینو مؤمنانو په اړه وفرمایل چې هغه محبت چې مشرکین یې له خپلو باطلو معبودانو سره لري ، مؤمنان له هغه څنې زیاته مینه او محبت له الله ➢ تعالی سره لري ، ځکه چې د مشرکانو مینه د دنیا په

---

[1] سورة البقرة آية ١٦٥

مصیبتونو کې زائلېږئ او د آخرت د عذاب د لیدلو په اثر به دوی له خپلو باطلو معبودانو ځنې بیخي بیزاره شي او ددې په عکس رښتیني مؤمنان چې له خپل الله ➢ سره ثومره مینه کوي هغه په مصیبت او راحت ، خوشحالي او غم ، په پټه او ښکاره په هر حالت کې یو شان وي او هېڅ تغیر نه مومي او تل تر تله باقي وي .

په بل ځای کې الله ➢ فرمايي :

يٰاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَنۡ يَّرۡتَدَّ مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ فَسَوۡفَ يَاۡتِى اللّٰهُ بِقَوۡمٍ يُّحِبُّهُمۡ وَ يُحِبُّوۡنَهٗۤ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ يُجَاهِدُوۡنَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَ لَا يَخَافُوۡنَ لَوۡمَةَ لَاۤئِمٍ‌ ؕ ذٰلِكَ فَضۡلُ اللّٰهِ يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ‌ ؕ وَ اللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ (۵۴) [1]

ترجمه : ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو!) هرڅوک چې مرتد شول (وګرځېدل) له تاسې نه له دین خپل څخه نو زر ده چې را به ولي الله ➢ داسې یو قوم چې محبت به کوي (الله ➢) له هغوی سره او محبت به کوي دوی له الله ➢ سره متواضع او مهربان به وي پر مؤمنانو غالب زبردست به وي په کافرانو باندې جهاد به کوي د الله ➢ په لاره کې (لپاره د ترقي د دین) او نه به ډارېږي دوی له ملامتیا د هېڅ ملامت کونکي دا (ذکر شوي صفات) د الله ➢ فضل دی

[1] سورة المائدة آية ٥٤

ورکوي يې هغه چاته چې اراده وکړي او الله ➢ فراخ دى (فضل، رحمت ، احسان دده) ښه عالم (خبردار په ټولو احوالو) .

په پورتني آيت کې الله ➢ وفرمايل که څوک د کفر سره د مينې له امله لدې مبارک دين څخه واوړي نو دوى به خپلو ځانونو ته زيان ورسوي او د دوى له مرتد کېدو اسلام ته هېڅ زيان نه رسيږي الله ➢ به ددې مرتدينو په مقابل کې داسې قوم راولي چې دوى به له الله ➢ سره محبت لري او الله ➢ به هم له هغوى سره محبت لري دوى به پر مسلمانانو مهربان او د اسلام د دښمنانو په مقابل کې به غالب او زبردست وي .

په بل ځاى کې الله ➢ فرمايي :

اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰـهَهٗ هَوٰىهُ ؕ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا ﴿۴۳﴾ [1]

ترجمه : آيا وينې خبر ئې ته (بلکه خبر ئې) په هغه چا چې نيولى دى دغه خداى خپل هوا (د نفس خپل) آيا ته به ئې په ده باندې وکيل (ساتونکى چې منع ئې کړې له هوا خپلې بلکه نه ئې) .

يعني آيا تاسې د داسې هوا پرستانو د هدايت پر لاره د راوستلو ذمه واري کولى شئ چې د دوى معبودان هم د دوى په خوښه او انتخاب وي چې هر

---

[1] سورة الفرقان آية ٤٣

طرف ته د دوی خواهش دوی بوزي دوی هم پسې روان وي هماغه طرف ته مائل کيږي هره خبره چې د دوی د خواهش سره برابره وي هغه مني او چې د دوی له طبعې څخه کومه خبره لرې وي هغه بيا نه مني نو رښتيني مؤمنان يوازې د الله ➢ سره مينه کوي او هم هغه ته عبادت کوي دا چې د خپلو خواهشاتو څخه ځان ته خدای او معبود جوړوي نو چې هرڅه يې خوښ شي هغه ته سجده کوي.

لکه مخکې چې مونږ وويل رښتيني مؤمنان له هغه کسانو سره مينه لري چې هغوی مسلمانان وي او د لااله الا الله ويونکي وي هغه کسان چې د کفارو سره مينه کوي د هغوی په اړه الله ➢ فرمايي:

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ط اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ وَ اَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ ط وَ يُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ط رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ رَضُوْا عَنْهُ ط اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ ط اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (٢٢)

ترجمه: او نه به مومې ته (ای محمده! او نه شايي چې بيا مومې) يو قوم چې ايمان ئې راوړی وي په الله ➢ او په ورځې آخرې (د قيامت) چې دوستي به کوي دوی له هغه چا سره چې مخالفت کوي له الله ➢ او له رسول د دغه (الله ➢) نه اګر که وي (دغه مخالفين) پلرونه د دوی او

زامن د دوی یا ورونه د دوی یا (نور قبیله) خپلوان د دوی دغه (قوم چې د الله ⮚ له دښمنانو سره دوستي نه کوي) الله ⮚ د دوی په زړونو کې ایمان لیکلی دی او قوي کړی ئې دی په غیبي فیض مدد سره له نزده خپله (او الله ⮚ دوی ته قوت ورکړی دی په روح رحمت خپل سره یا په رڼا د زړه سره په قرآن عظیم الشان سره) او (دا کسان چې له کفارو سره دوستي نه کوي) الله ⮚ به یې داخل کړي په جنتونو کې چې بهیږي له لاندې د (ونو او ماڼیو د هغو (څلور قسمه) ویالې تل به وي دوی په هغو (جنتونو) کې راضي شو الله ⮚ له دوی څخه (په طاعت سره) او راضي شول دوی له الله ⮚ څخه (په موندلو د جنت) (او خوشحال شو الله ⮚ له دوی څخه په سبب د طاعت سره په دنیا کې او خوشحاله شول دوی په آخرت کې له الله ⮚ څخه په موندلو د لقاء او رضاء او اعطاء د جنت ) دغه خلک (چې د الله ⮚ د دښمنانو سره دوستي نه کوي) د الله ⮚ لښکر دی واورئ ! خبردار شئ! چې بېشکه لښکر د الله ⮚ چې دی هم دوی په مراد رسېدونکی کامیاب .

شاه ولی الله صاحب لیکي (ددې معنی داده چې هرڅوک چې د الله ⮚ د مخالفینو (دښمنانو) سره دوستي نه لري اګر که ئې پلار وي یا نور خپلوان

هم وي هغوی هم رښتوني مسلمانان دي او هغوی ته
به دا درجه رسیږي ) د رسول الله ♈ په وخت کې
د صحابه وو داسې شان وو چې د الله ➢ او د هغه
د رسول ♈ د قرآن او اسلام په معامله کې به
یې د هېچا پروا نه کوله مثالونه یې ډېر زیات
دي د احد په غزا کې حضرت ابو عبیدة ❽ د
خپل پلار سره مخامخ شو او هغه یې ووژلو د بدر
په غزا کې حضرت ابو بکر صدیق ❽ د خپل زوی
سره مخ کېدلو ته تیار شو د بدر په غزا کې
اکثر د ترونو زامن وو چې د نورو د ترونو د
زامنو سره په جنګ کې مخامخ شول د منافقینو د
رئیس (مشر) زوی حضرت عبد الله ❽ چې جلیل القدر
صحابي دی د المریسع په غزوة کې د رسول الله ♈
نه وغوښتل چې ده ته اجازه ورکړي چې دی خپل
پلار قتل کړي (ځکه چې هغه په ښکاره سره مؤمن
لکن په پټه منافق وو) نو دې ټولو خپلوانو
صرف د الله ➢ او دهغه د رسول سره مینه کوله او
ددې په بدل کې هرې قربانۍ ته تیار وو په
غزوة احد کې د بني دینار قبیلې یوه ښځه وه
چې ورور، پلار او خاوند یې درې واړه په احد کې
شهیدان شوي وو کله چې چا ورته د دریو واړو
کسانو د شهادت خبر ورکړو دې پوښتنه وکوله چې
رسول الله ☸ څنګه دی؟ خلکو ورته وویل چې هغه لله
الحمد هغه ژوندی او ښه دی دې مبارکې رضی الله

تعالی عنها وویل ماته یې را وښیئ چې زه ورته و ګورم .. چا ورته اشاره وکوله چې وئې لېدو وئې ویل ستا نه بغیرهر غم وړوکی دی (الله ① د ستا غم نه را ویني) .

په بل ځای کې الله ➢ فرمایي چې څوک د یهودو او نصاراوو سره مینه کوي دا هم د هغوی له ډلې څخه دي الله ➢ فرمایي :

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَ النَّصٰرٰى اَوْلِيَآءَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَ مَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (۵۱)[1]

ترجمه : ای مؤمنانو مه نیسئ تاسې یهودیان او نصرانیان دوستان! (چې له دوی سره موالات او دوستي وکړئ) (دوی یو تر بله ) ځیني دوستان دي د ځینو نورو (ځکه چې ټول سره په کفر کې شریک دي او ټول سره تاسې ته متفق دي او هرچا چې دوستي وکړه له دوی سره له تاسې ځنې نو بېشکه چې دی له هم دوی ځنې دی (نو مؤمنان دې ځان د کفارو له دوستي وساتي) بېشکه الله ➢ ظالم قوم ته هدایت نه کوي (چې ظلم کوي په خپل ځان باندې په دوستي کولو له کفارو سره) .

په پورتني آیت کې الله ➢ په ښکاره سره وویل چې څوک له کفارو سره مینه کوي دا کس د هغوی په

1 سورة المائدة آية ٥١

ډله کې شامل دی دا آیت د منافقینو د مشر عبد الله بن ابی په باره کې نازل شوی دی ځکه دده تعلقات د یهودو سره ډیر کلک وو ده ګمان کاوه که چېرته په مسلمانانو باندې څه تکلیف راشي نو د یهودو سره دا تعلق به دا دوی په کار شي او هغوی د اسلام سخت دښمنان وو او اوس هم دي او پدې کې هیڅ شک نشته چې څوک د کومې کفري ډلې سره ددې امله دوستي وکوي چې دوی د اسلام دښمنان دي نو هغه کافر کیږي .[1]

➢ په بل ځای کې الله مسلمانانو ته فرمایي که ستاسې پلرونه او ورونه هم کافران وي دوستي ورسره مه کوئ نو پردي خلک چې کافران وي د هغوی سره به مسلمان ولي دوستي کوي ➢ الله فرمایي :

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا اٰبَآءَكُمْ وَ اِخْوَانَكُمْ اَوْلِيَآءَ اِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْاِيْمَانِ ؕ وَ مَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (٢٣) [2]

ترجمه : ای هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی (ای مؤمنانو!) مه نیسئ تاسې پلرونه خپل او ورونه خپل دوستان که محبوب ګانه دوی کفر پر ایمان او هرچا چې دوستي وکړه له دغو (کفارو) سره له تاسې نو دغه کسان هم دوی دي ظالمان .

---

[1] کابلی تفسیر

[2] سورة التوبة آیة ٢٣

سره ددې چې اسلام بیا بیا مونږ ته د خپلوی په ساتلو باندې امر کوي لکن پدې آیت کې الله ➢ له خپل کافر پلار او کافر ورور سره دوستي کول په ځان باندې ظلم ګڼلی دی نو هغه کفار چې په خپلوي کې هم انسان ته نیږدې نه وي د هغوی سره خو دوستي کول سخت ظلم دی .

په بل ځای کې الله ➢ په ښکاره الفاظو سره د دوی له دوستي څخه منع کوي الله ➢ فرمایي :

**يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّیْ وَ عَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَ قَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ**

ترجمه : ای هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی (ای مؤمنانو!) مه نیسئ تاسې زما دښمن او خپل دښمن خپل دوستان په داسې حال کې چې تاسې هغوی ته ور رسوئ ځینې خبرونه په سبب د دوستی (چې د ستاسې او د هغوی په مینځ کې ده) په تحقیق سره هغوی کافران شوي دي په هغه شي چې راغلي دي تاسې ته له حق (دین او قرآن ) څخه .

رسول الله ♈ فرمایي : ثلاث من كن فيه وجد بهن حلاوة الإيمان: أن يكون الله ورسوله أحب إليه مما سواهما, وأن يحب المرء لا يحبه إلا لله, وأن يكره أن يعود في الكفر بعد أن أنقذه الله منه كما يكره أن يقذف في النار

ترجمه : درى شيان دي چې په چا کې وي نو په هغه دريو شيانو باندې به د ايمان خوږوالی محسوس کړي :

١. چې الله ➢ او د هغه رسول تر بل هر چا څخه ورته ګران وي .

٢. چې له چا سره مينه کوي صرف د الله ➢ لپاره يې ورسره کوي.

٣. الله ➢ چې يو ځل له کفر نه خلاص کړی دی بېرته ور ګرځېدل يې دومره بد ايسي لکه په اور کې چې اچول کيږي .

د حضرت انس ابن مالک ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : لا يؤمن أحدكم حتى أكون أحب إليه من ولده ووالده والناس أجمعين

ترجمه : په تاسې کې څوک تر هغه وخته پورې کامل مؤمن نشي کېدلی ترڅو زه دهغه د زوی ، پلار او ټولو خلکو نه ورته ګران نه شم.

حضرت عبد الله ابن عباس ❽ فرمايي : من أحب في الله وأبغض في الله ووالى في الله وعادى في الله, فإنما تنال ولاية الله بذلك وقد أصبح غالب مؤاخاة الناس اليوم على أمر الدنيا, وذلك لا يجدي على أهله شيئا

چا چې د الله ➢ لپاره محبت وکولو ، د الله ➢ لپاره يې له چا سره کينه وکوله او له چا سره

➢ يې د الله لپاره دوستي وکوله ، له چا سره يې
➢ د الله لپاره دښمني وکوله پدې سره به ده ته
➢ د الله دوستي ورسيږي او په اوس وخت کې خو د اکثرو خلکو ورور ګلوۍ د دنيايي کارونو لپاره وي دا دوی ته هيڅ فايده نه کوي .

## د کلمة التوحيد فضيلت

په حديثو کې راغلي دي چې د انسانانو په ټولو خبرو کې غوره خبره داده چې انسان ووايي لا اله الا الله او همدا کلمه ده چې اسمانونه او زمکې وربانديې ولاړې دي او همدا کلمه ده چې د حق او باطل په مينځ کې جدايي راولي او همدا کلمه ده چې د کفر او اسلام په مينځ کې فرق کوي تراوسه چې د انسانيت په تاريخ کې انسان وربانديې خبر دی دا بهترينه کلمه ده او لکه مخکې چې تېر شول کله چې انسانان لا نه وو پيدا شوي د هغوی د ارواحو څخه الله ➢ د همدې کلمې تعهد اخستی وو او هغوی يې پدې کلمه باندې ګواه کړې وو دهغه تعهد په اړه الله ➢ فرمايي :
وَ اِذۡ اَخَذَ رَبُّکَ مِنۡۢ بَنِیۡۤ اٰدَمَ مِنۡ ظُهُوۡرِهِمۡ ذُرِّیَّتَهُمۡ وَ اَشۡهَدَهُمۡ عَلٰۤی اَنۡفُسِهِمۡ ۚ اَلَسۡتُ بِرَبِّکُمۡ ؕ قَالُوۡا بَلٰی ۚۛ شَهِدۡنَا ۚۛ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ اِنَّا کُنَّا عَنۡ هٰذَا

غٰفِلِيْنَ (١٧٢)ۙ اَوْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اَشْرَكَ اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَ كُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْۢ بَعْدِهِمْۚ اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ (١٧٣) [1]

ترجمه : او یاد کړه (ای محمده) هغه وخت چې واخیست رب ستا له بني آدمو څنې له شاګانو د دوی څخه اولاد د دوی او شاهدان یې کړل دوی ټول پر ځانونو خپلو باندې (او الله ➢ دوی ته وفرمایل) آیا نه یم زه رب ستاسې! وویل دوی (او اقرار یې وکړو) هو! (ته رب زمونږ یې ، اقرار یې وکړو په ربوبیت د الله ➢ ) ګواه کړل مونږ خپل نفسونه (ددې جهته) چې ونه وایئ تاسې په ورځ د قیامت کې چې بېشکه مونږ وو له دغه (توحیده) غافلان (نا خبره) او یا ددې جهته چې ونه وایاست تاسې چې بېشکه همدا خبره ده چې شرک غوره کړی وو زمونږ پلرونو پخوا له (مونږه) او وو مونږ اولاده پس له دوی نه (نو اقتداء کړې وه مونږ په هغو پسې) نو آیا هلاکوې (په عذابوې ته یا الله ➢ !) مونږ په هغه کارونو باندې چې کړي وو باطله عمل کونکو (مشرکانو) . [2]

---

[1] سورة الاعراف آیة ١٧٢ او ١٧٣

[2] کابلی تفسیر

## لا إلــه إلا الله كـلـمـه طـيـبـة

لا إلــه إلا الله تــه پــه قــرآن كـريـم كـې كـلـمـة طـيـبـة ويـل شـوېـد ه الله ➢ فـرمـايـي :

اَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصۡلُهَا ثَابِتٌ وَّ فَرۡعُهَا فِى السَّمَآءِ (٢٤) تُؤۡتِىۡ اُكُلَهَا كُلَّ حِيۡنٍ بِاِذۡنِ رَبِّهَا ؕ وَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡاَمۡثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ (٢٥) وَ مَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيۡثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيۡثَةِ اجۡتُثَّتۡ مِنۡ فَوۡقِ الۡاَرۡضِ مَا لَهَا مِنۡ قَرَارٍ (٢٦) [1]

تـرجـمـه : آيـا ويـنـې تـه (اى بـنـده) څـرنـګـه چـې بـيـانـوي الله ➢ يـو مـثـال كـلـمـه پـاكـيـزه (چـې لا إلـه إلا الله ده) پـه شـان د هـغـې ونـې پـاكـيـزې (چـې د خـرمـا ده) چـې بـېـخ ددې خښ وي (پـه زمـكـه كـې) او څـانـګـې يـې (پـورتـه) پـه (جـانـب د) اسـمـان (تـلـلـي) وي ، چـې وركـوي (دا ونـه) خـوراك (مـېـوه) خـپـلـه هـر مـقـرر وخت پـه اجـازه (حـكـم ) د رب خـپـل او بـيـانـوي الله ➢ مـثـالـونـه لـپـاره د خـلـكـو ددې لـپـاره چـې دوى پـنـد تـرې واخـلـي او مـثـال د خـبـيـثـې كـلـمـې (چـې كـلـمـه د كـفـر ده) پـه شـان د هـغـې ونـې خـبـيـثـې (بـد بـويـه بـد خـونـده) ده چـې ايـسـتـلـى شـوې وي لــه سـر د زمـكـې چـې نـه وي ورتـه هېڅ ډول قـدر او قـرار (ثـبـات) [2]

---

[1] سورة ابـراهيم آيـة ٢٤ تـر ٢٦ پـورې

[2] كـابـلـى تـفـسـير

لکه د کابلي تفسیر په معنی کې (دا پاس لیکلې ده) په قوس کې لیکلي وو چې پاکې کلمې نه کومه چې الله ➢ په مثال کې پاکې ونې سره مشابه کړېده مراد د لا إله إلا الله کلمه ده او د خبیثې کلمې نه مراد د کفر او شرک کلمه ده .

نو داسې به ووایو چې الله ➢ په پورتني آیت کې لا إله إلا الله کلمه د هغه ونې سره مشابه کړېده چې په ښه توګه په زمکه کې په ټینګه سره لګېدلې وي چې د موسم حالات بادونه او سیلۍ په هغې باندې د هغې د ټینګښت له امله تاثیر نشي کولی او دا پاکه ونه په خپل ژوند کې خلکو ته ډېرې فایدې ورکوي یخ سیوری چې خلک ترینه استفاده کوي او خوږه مېوه چې خلک یې په مینه خوري او لذت ورڅخه اخلي نو همداسې دا مبارکه کلمه هم ده چې زړه ته ور ننوزي زړه د ایمان او نور څخه ډکوي او زړه ته اطمنان ورکوي په زړه کې خوشحالي پیدا کوي او ددې کلمې ساتونکی (مؤمن) په خپل ژوند کې هغه سکون محسوس کوي چې هغه احساس یو کافر انسان ځان ته په ډېر لوی مصرف هم نشي اخستلی .

مشهور مفسر امام طبري رحمه الله ددې آیة په تفسیر کې فرمایي :

{ كلمة طيبة } هذا مثل الإيمان، فالإيمان الشجرة الطيبة، وأصله الثابت الذي لا يزول الإخلاص لله، وفرعه في السماء، فرعه خشية الله

ترجمه : دا د ایمان مثال دی نو ایمان هغه پاکه ونه ده چې اصل یې ثابت دی چې د الله ➢ سره همېشنی اخلاص ورسره وي او فروع یې په اسمان کې دي او فروع یې له الله ➢ څخه وېره ده .

همدارنګه د اکلمه طیبه مسلمان هم کېدلی شي دا هم لکه هغه پاکه ونه داسې وي چې د هر ډول مشکلاتو په مخ کې لکه ټینګه ونه داسې ولاړ وي چې هر مشکل مخ ته راځي نو دی ورته د الله ➢ نوم اخلي ددې امله چې هر ډول مشکل مخې ته راځي نا امیدي او د ناکامي څخه ډار دده زړه ته د ورتلو لاره نشي پیدا کولی او په هرشي کې په الله ➢ توکل کوي او ترڅو چې ژوندی وي په هره لحظه کې یې نېک اعمال پورته کیږي او په هر سبا او بیګاه کې دده په عمل نامه کې یوازې نېک عملونه لیکل کیږي او هغه کس چې د ایمان له نعمت څخه محروم وي د هرشي څخه ډاریږي او په زړه کې کمزوری وي د هېڅ مشکل زور نه لري او د هېڅ تکلیف د برداشت حوصله نه لري ددې امله دي چې د ژوند نه د تنګېدلو له امله د ځان وژنو شمېره په کفري ملکونو کې له اسلامي ملکونو څخه هر وخت زیاته وي او که چېرته په اسلامي ملکونو کې هم واقع شي نو هغه په داسې ماحول کې نه واقع کیږي چې هغه په شریعت پابند خلک وي او د اسلامي آدابو څخه خبر وي .

او کافر چې ترڅو پورې ژوندی وي نه یې څه نېک اعمال پورته کیږي او نه یې څه نیک کار قبلیږي هرڅه چې کوي اګر که نېک عمل هم کوي هغه بې ځایه ځي دده د ستړیا نه بغیر پکې نوره هېڅ فایده هم نه وي نو ځکه یې نه په زمکه کې اصل ثابت او کلک وي او نه یې فرع اسمان ته ختلې وي .

لا إلــه إلا الله د الله ➢ نــعمت

لااله الا الله کلمه چې څوک ووایي او ایمان وربانــدې راوړي پدې سره ده ته شرف ورکول کیږي او دا شرف د الله ➢ یو نعمت دی د ایمان شرف څوک ځان ته په زور نشي حاصلولی او نه چاته په پیسو لاس ته ورځي د رسول الله ♈ د وخت نه را نیولې تر اوسه پورې په دنیا کې ډېر زورور خلک دي او ډېر د دولت لرونکي خلک دي لکن د دوی له بده مرغه بیا هم له ایمان څخه بې برخې دي او دا له لوی نعمت څخه بې برخې کېدل دي ځکه ایمان د الله ➢ نعمت دی پدې اړه الله ➢ فرمایي :

يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ؕ قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَيَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (١٧) [1]

---

[1] سورة حجرات آیة ١٧

ترجمه : احسان باروي دوی په تا باندې (ای محمده!) د دې چې تش مسلمانان شوي دي دوی ووایه ته (ای محمده! دوی ته) احسان مه باروئ تاسې په ما باندې د اسلام راوړلو د تاسې بلکه الله ➢ احسان کوي په تاسې باندې ددې چې لاره یې وښودله تاسې ته د ایمان راوړلو که یئ تاسې رښتیني (په دعوی د ایمان کې) [1]

یعني که په واقعي ډول تاسې د اسلام دعوه لرئ او په رښتیا سره مؤمنان یاست نو دا ستاسې احسان نه دی لکه چې ځینې کوچیان او د صحراګانو اوسیدونکې به چې رسول الله ♈ ته راغلل ورته ویل به یې وګوره مونږ لتاسره بې له جنګه او جګړې اسلام قبول کړو نو دا د الله ➢ احسان دی په تاسې باندې چې تاسې ته یې هدایت کړی دی .

[1] کابلی تفسیر

## جهاد د ایمان او کلمې لپاره

د همدې کلمې لا إله إلا الله او د ایمان لپاره جهاد کیږي ددې لپاره په مسلمانانو باندې جهاد فرض شوی دی ترڅو ټول خلک دا کلمه ووایي ، ایمان وربانديې راوړي او ددې په مقتضی باندې عمل وکوي الله ➢ چې کله مسلمانانو ته د کفارو سره د جنګ کولو امر کوي نو فرمایي :

**وَ قٰتِلُوۡهُمۡ حَتّٰی لَا تَکُوۡنَ فِتۡنَۃٌ وَّ یَکُوۡنَ الدِّیۡنُ لِلّٰہِ ؕ فَاِنِ انۡتَہَوۡا فَلَا عُدۡوَانَ اِلَّا عَلَی الظّٰلِمِیۡنَ (۱۹۳)** [1]

ترجمه : او جنګ کوئ تاسې له د وی سره تر هغه پورې چې پاتې نشي فتنه (شرک او فساد) او شي دین (حکم) خاص الله ➢ لره پس که چېرې وګرځېدل (دوی له شرکه نو پس تجاوز مه کوئ پر دوی باندې) نو نشته هېڅ تېری مګر (خو شته جزا د ظلم ) پر ظالمانو باندې .

یعني د کفارو سره جنګ ددې لپاره او تر هغه وخته پورې وکوئ چې د شرک او فساد بنیاد بالکل ورک شي او دوی ته داسې وس او قوت پاتې نشي چې په هغه سره نور خلک ګمراهان کړي او له اسلام څخه یې وګرځوي او که چېرته دا مشرکان له شرک څخه مخ واړوي نو بیا وربانند تېری مه کوئ .

[1] سورة البقرة آیة ۱۹۳

پدې اړه رسول الله ♈ فرمايي : أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأني رسول الله ويقيموا الصلاة ويؤتوا الزكاة فإذا فعلوا ذلك عصموا مني دماءهم وأموالهم إلا بحق الإسلام وحسابهم على الله .[1]

ترجمه : ماته امر شوى دى چې د خلكو سره تر هغه وخته پورې و جنګېږم ترڅو چېددې ګواهي وركړي چې د الله ➢ نه بغير بل په حقه د عبادت لائق معبود نشته او مونځ وكوي زكات وركړي كله چې دا كارونه وكوي نو بيا د هغوى وينې او د دوى مالونه لما څخه په امن كې شول بغير د اسلام له حق نه او پاتې د دوى نور حساب په الله ➢ باندې دى .

[1] صحيح البخاري و مسلم

## د کلمې په اړه به پوښتنه کیږي

په قیامت کې به د کلمة التوحید په اړه له خلکو نه پوښتنه کیږي او له خلکو نه به ددې پوښتنه کیږي چې دوی د الله ➢ په وحدانیت باندې ایمان راوړی وو او کنه الله ➢ پدې اړه فرمایي :

فَوَ رَبِّکَ لَنَسْئَلَنَّہُمْ اَجْمَعِیْنَ ﴿۹۲﴾ عَمَّا کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾ [1]

ترجمه : نو قسم د وي په رب ستا چې خامخا و به پوښتو مونږ خامخا دوی ټول د هغو اعمالو څخه چې وو دوی چه کول به یې .

یعني پوښتنه به تري وکړو چې د چا عبادت مو کړی وو ؟ د انبیاوو سره څنګه مخامخ شوي وئ؟ لا إله إلا الله مو ولې نه ویله؟ ددې کلمې حق مو ولې نه وو اداء کړئ . [2]

➢ په بل ځای کې د همدې پوښتنې په اړه الله فرمایي :

فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِیْنَ اُرْسِلَ اِلَیْہِمْ وَ لَنَسْئَلَنَّ الْمُرْسَلِیْنَ ﴿۶﴾ [3]

ترجمه : نو خامخا به وپوښتو مونږ (په قیامت کې) هرو مرو (خامخا) هغه (امتونه) چې لیږلی شوی دي دوی ته (رسولان چې څه اجابت یې کړی دی) او خامخا و به پوښتو رسولان (هم له اداء د

---

[1] سورة الحجر آیة ۹۲ او ۹۳
[2] کابلی تفسیر
[3] سورة ا لاعراف آیة ٦

رسالت او له ابلاغه د احکام او ددې چې ستاسې امتونو څرنګه اجابت وکړ ؟)
دا چې ددې کسانو څخه په څنګه پوښتنه کیږي الله ➢ په بل ځای کې هغه پوښتنه هم مونږ ته ښکاره کړې ده هلته الله ➢ فرمايي :
وَ يَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ فَيَقُوۡلُ مَاذَآ اَجَبۡتُمُ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (۶۵) [1]
ترجمه : او ياد کړه هغه ورځ چې غږ به وکړي دوی ته (الله ➢ ) پس وبه وايي چې څه ځواب ورکړی وو تاسې رسولانو ته (په هغه وخت کې چې حق ته غوښتل شوي وئ؟ نو دا پوښتنه به ورڅخه وشي چې پيغمبران تاسې ته د لارښونې لپاره درغلي وو تاسې له هغوی سره څه وکول؟ دهغوی په خبر مو عمل وکولو؟ ايمان مو راوړو؟ نو دوی په ددې پوښتنې په ځواب کې څه ووايي الله ➢ هغه هم مونږ ته بيانوي او فرمايي :
فَعَمِيَتۡ عَلَيۡهِمُ الۡاَنۡۢبَآءُ يَوۡمَئِذٍ فَهُمۡ لَا يَتَسَآءَلُوۡنَ (۶۶) [2]
ترجمه : پس پټ به شي پر دوی خبرونه (دوی ته به هېڅ خبره د ځواب لپاره نه وي او د خبرو لارې به پرې بندې شي) او دوی په يو له بل نه پوښتنه هم نه کوي يعنې پدې وخت کې به له هېچا سره هم داسې ځواب نه وي چې دده په ګمان

[1] سورة القصص آية ٦٥
[2] سورة القصص آية ٦٦

څه کار به پرې وشي نو پته خوله به وي او له هېڅ سره به د ويلو څه شی نه وي .

الله ➢ بيا هم مونږ ته فرمايي چې ددې مشکل څخه چې په قيامت کې مو سرونه ښکته اچولې وي او د ځواب لپاره درسره خبره نه وي اوس هم وخت شته او اوس هم ددې مشکل حل راوزي په ورپسې آيت کې الله ➢ فرمايي :

**فَاَمَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَعَسٰى اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ (۶۷)** [1]

ترجمه : پس هغه څوک چې توبه وباسي (له شرکه) او ايمان راوړي (په الله ➢ او د الله ➢ په رسول) او عمل وکړي د نيکيو پس ښايي چې وي به دی له هغه کسانو چې هغوی به په آخرت کې له عذابه خلاص وي .

يعني د هغه ځای (آخرت) کاميابي صرف په ايمان او نېکو عملونو کې ده که اوس هم څوک له شرکه او له کفره توبه وباسي او ايمان راوړي او د نېکو خلکو لاره ځان ته غوره کړي الله ➢ د ده ګناهونه ورته معاف کوي.

امام ابن قيم رحمه الله په زاد المعاد کې ددې آيتونو په اړه فرمايي :

وعنها يسأل الأولون والآخرون , فلا تزول قدما العبد بين يدي الله حتى يسأل عن مسألتين ,

[1] سورة القصص آية ٦٧

ماذا كنتم تعبدون ؟ وماذا أجبتم المرسلين ؟

فجواب الأولى : بتحقيق " لا إله إلا الله " معرفة وإقرارا , وعملا . وجواب الثانية : بتحقيق [ أن محمد رسول الله ♈ معرفة وإقرارا , وانقيادا , وطاعة )

ترجمه : او ددې خبرو پوښتنه به د اولنیو او وروستنیو دواړو خلکو څخه کیږي او یو بنده به تر هغه وخته پورې د الله ➢ په حضور کې ولاړ وي ترڅو د هغه څخه د دوو مسئلو پوښتنه نه وې شوې:

١. د څه شي عبادت مو کاوه؟

٢. د رسولانو سره څنګه مخامخ شوي وئ؟ نو په تحقیق سره د اول سوال سم ځواب دادی چې نشته په حقه معبود مګر یوازې الله ➢ دی د پوهې سره، د اقرار سره ، د عمل سره او د دوهمې پوښتنې ځواب دادی چې بېشکه محمد د الله ➢ رسول دی له پوهې سره ، له اقرار سره ، له غاړې کېښودلو سره، له اطاعت سره.

یعني صرف هغه کسان ددې پوښتنو سم ځواب ورکولی شي چې په دنیا کې یې دا مبارکه کلمه پداسې حالت کې ویلې وي چې پدې پوهیږي ، هم یې اقرار ورباندې کړی وي او هم یې په ټولو مقتضیاتو

بانديې عمل کړی وي او هم يې د رسول الله ♈ اطاعت کړی وي .

## لا إله إلا الله ټينګه خبره

لا إله إلا الله ته په قرآن کريم کې قول ثابت (ټينګه خبره) ويل شويده هغه ځوک چې دا ووايي او يقين وربانديې وکوي الله ➢ هغه په دنيا او آخرت کې محکم او ټينګ ساتي په بخاري شريف کې د حضرت البراء بن عازب ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل :

المسلم إذا سئل في القبر , شهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله ♈ , فذلك قوله : ( يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آَمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآَخِرَةِ ) [1]

ترجمه : د مسلمان ځخه چې کله په قبر کې پوښتنه وشي هغه ددې ګواهي ورکړي چې نشته په حقه معبود مګر يو الله ➢ دی او محمد د الله ➢ رسول دی نو دا ګواهي يې هغه ځه دي چې الله ➢ يې په اړه په قرآن کريم کې (سورة ابراهيم آية ٢٧) کې فرمايلي دي : الله ➢ ټينګوي هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی په ټينګه خبره سره د دنيا په ژوند کې او په آخرة کې .

## لا إله إلا الله د تقوی کلمه

[1] سورة إبراهيم : 27

لا إلــه إلا الله تــه پــه قــرآن كــريــم كــې د تــقــوى كــلــمــه ويــل شــويــده الله ➢ فــرمــايــي :

اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاہِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَ اَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَ كَانُوْا اَحَقَّ بِهَا وَ اَہْلَهَا ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمًا (٢٦) [1]

تــرجــمــه : كــلــه چې ګــرځــولــی وو هــغــو كــســانــو چې كــافــران شــوي وو پــه زړونــو خــپــلــو كــې نــنــګ هــسې نــنــګ چې د جــاهــلــيــت نــاپــوهــي وه نــو راښــكــتــه كــړي الله ➢ ډاډيــنــه (ســكــون) او اطــمــنــان خــپــل پــر رســول خــپــل او پــر مــؤمــنــانــو بــانــدې او ټــيــنــګــه لازمــه ئــې كــړلــه هــغــوی لــره كــلــمــه د تــقــوى او وو دوى ښــه لائــق وړ (مــســتــحــق) لــه دغــه ســره او اهــل ددې (كــلــمــې د تــقــوى) او دى الله ➢ پــه هــرشــي بــانــدې ښــه پــوه .

دا چې ددې كــلــمــة الــتــقــوى څــخــه مــراد كــلــمــه د لا إلــه إلا الله ده پــه تــرمــذي كــې د حــضــرت ابــی ابــن كــعــب ❽ څــخــه روايــت دی چې هــغــه د رســول الله ♈ څــخــه واوريــدل هــغــه فــرمــايــل و الــزمــهــم كــلــمــة الــتــقــوى يــعــنــي لا إلــه إلا الله .

## لا إلــه إلا الله د حق كــلــمــه

لا إلــه إلا الله تــه پــه قــرآن كــريــم حق (كــلــمــه د حق) ويــل شــوي دي الله ➢ فــرمــايــي :

[1] ســورة الــفــتــح آيــة ٢٦

وَ لَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ (٨٦)

ترجمه : او اختيار نه لري هغه معبودان چې دوی ئې عبادت کوي بې له دغه (الله ➢ ) د شفاعت (لکه چې منکران گمان کوي) مگر هغه څوک چې شاهدي ئې ويلې وي (په ژبه) په حقه سره حال دا چې دوی پوهيږي (او علم يې وي پر هغو باندې په زړه سره)

امام ابن الجوزي په خپل تفسير (زاد المسير) کې ددې آيت په تفسير کې ليکلي دي :

( إِلاَّ مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ ) : وهو أن يشهد أن لا إله إلا الله , ( وَهُمْ يَعْلَمُونَ ) : بقلوبهم ما شهدوا به بألسنتهم . وهذا مذهب الأكثرين , ومنهم قتادة .

ترجمه : الا من شهد بالحق هغه داده چې ددې گواهي ورکړي چې نشته په حق معبود بغير د الله ➢ نه ( وَهُمْ يَعْلَمُونَ ) چې دوی پوهيږي په زړونو باندې په هغه شي چې دوی يې په ژبو باندې گواهي ورکوي او دا رايه د ډيرو علماوو ده د هغوی څخه قتادة رحمه الله هم دی .

## لا إله إلا الله ساتونکې کلمه

لا إله إلا الله په دنيا او آخرت کې د انسان ساتنه کوي په دنيا کې يې داسې ساتنه کوي چې د

مسلمانانو له لاسونو څخه يې مال او سر په امن شي لکه په صحيح مسلم او صحيح بخاري کې چې حديث دی رسول الله ♈ فرمايي :

أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأني رسول الله ♈ ويقيموا الصلاة ويؤتوا الزكاة فإذا فعلوا ذلك عصموا مني دماءهم وأموالهم إلا بحق الإسلام وحسابهم على الله [1]

ترجمه : ماته امر شوی دی چې د خلکو سره تر هغه وخته پورې و جنګېږم ترڅو چې ددې ګواهي ورکړي چې د الله ➢ نه بغير بل په حقه د عبادت لائق معبود نشته او مونځ وکوي زکات ورکړي کله چې دا کارونه وکوي نو بيا د هغوی وينې او د دوی مالونه لما څخه په امن کې شول بغير د اسلام له حق نه او پاتې د دوی نور حساب په الله ➢ باندې دی .

او په آخرت کې هم کلمه د لوستونکي ساتنه کوي لکه په صحيح مسلم کې روايت شوی دی چې رسول الله ♈ له يوه اذان کونکي څخه واورېدل چې هغه ويل : ( أشهد أن لا إله إلا الله ) رسول الله ♈ وويل (خرجت من النار) (يعني له اور نه ووتلې) يعني د کلمې په ويلو سره په آخرت کې د اور نه وساتل شوې .

---

[1] صحيح البخاري و مسلم

## لا إلــه إلا الله د اسلام او کفـر پــه مـینـځ کـې فـرق

لا إلــه إلا الله ویـل او پـدې بـانـدې ایـمـان درلــودل د اسلام او کفـر پـه مـینـځ کـې فـرق دی او همدا د کـافـر او مـسلـمـان پـه مـینـځ کـې فـرق دی الله ➢ پـه قـرآن کـریـم کـې د حضرت ابـراهیم ⌨ او د مـؤمـنـانـو خبـره مونـږ تـه نـقـل کـوي او فـرمـایـي :

قَدۡ كَانَتۡ لَكُمۡ اُسۡوَةٌ حَسَنَةٌ فِىۡۤ اِبۡرٰهِيۡمَ وَ الَّذِيۡنَ مَعَهٗ‌ ۚ اِذۡ قَالُوۡا لِقَوۡمِهِمۡ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنۡكُمۡ وَ مِمَّا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ‌ كَفَرۡنَا بِكُمۡ وَ بَدَا بَيۡنَنَا وَ بَيۡنَكُمُ الۡعَدَاوَةُ وَ الۡبَغۡضَآءُ اَبَدًا حَتّٰى تُؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَحۡدَهٗۤ [1]

تـرجمـه : پـه تـحقـیق شتـه تـاسې لـره (ای مـؤمـنـانـو) طریـقـه ښه (چې ا قـتـداء پـسې کـولـی شئ) پـه (قـول او فـعل) د ابـراهیم کـې او پـه (قـول – فـعل د) هغـه چـا کـې چې ده سره وو (لـه مـؤمـنـانـو) کـلـه چې وویـل (دغـه ابـراهیم او اتـبـاعو ئې مـشرکـانـو د) قـوم د دوی تـه چې بـې‌شکـه مـونـږ جلا (جدا) بـیـزاره یـو لـه تـاسې څخه او (بـېزاره یـو) لـه هغـه شي څخه چې عبـادت یـې کـوئ تـاسې بـې لـه الله ➢ مـنـکـران شوي یـو مـونـږ (پـه بـاطل دیـن) ستـاسې بـانـدې او ښکـاره شوی دی پـه مـیـنـځ زمـونـږ او ستـاسې کـې عداوت دښمـنـي او بـغض حسد ابـدي تـر هغـه پـورې چې ایـمـان

---

[1] سورة الـمـمتحنـة آیـة ٤

راوړئ په الله ➢ باندي یوازي (چې واحد او لا شریک دی) .[1]

یعني هغه کسان چې د ایمان سره د حضرت ابراهیم ⌨ سره ملګري شوي دي هر یوه په خپلو فعلونو او قولونو سره له هغه کفارو څخه د بیزاري او بېلتون اعلان کړی دی او ابراهیم ⌨ سره له نورو اتباعو خپلو وویل مشرکانو د خپل قوم ته چې په تحقیق سره مونږ بیزاره یو له تاسې څخه او بېزاره یو له هغه شي څخه چې عبادت یې کوئ تاسې بې له الله ➢ چې بتان دي او کافر شوي یو مونږ په دین یا په معبود ستاسې باندي یعني ای کافرانو چې تاسې څرنګه له الله ➢ څخه منکر یاست مونږ ستاسې څخه ، ستاسې له خپلوي څخه ، ستاسې له طریقې څخه منکر یو .

په بل ځای کې الله ➢ د مشرکانو په اړه په قرآن کریم کې مسلمانانو ته خبرې کوي او بیا په آخر کې ورته فرمایي چې که اوس هم دوی لدې خپل شرک څخه توبه وباسي او ایمان قبول کړي نو بیا اوس هم دا ستاسې ورونه دي بیا هم ستاسې او د هغوی په مینځ کې فرق نشته ځکه فرق ستاسې او د هغوی په مینځ کې د ایمان وو چې بنیاد یې (لا إله إلا الله ) دی چې دوی هم دا ومني

نو بیا ستاسې ورونه دي الله ➢ فرمایي :

---

[1] کابلی تفسیر

اِشۡتَرَوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيۡلًا فَصَدُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ؕ اِنَّهُمۡ سَآءَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (٩) لَا يَرۡقُبُوۡنَ فِىۡ مُؤۡمِنٍ اِلًّا وَّ لَا ذِمَّةً ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُعۡتَدُوۡنَ (١٠) فَاِنۡ تَابُوۡا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخۡوَانُكُمۡ فِى الدِّيۡنِ ؕ وَ نُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ (١١) [1]

ترجمه : دوی د الله ➢ په آيتونو باندې لږ او معمولي قېمت اخستی دی نو دوی خلک منع کوي (يا پخپله څنګ کوي) له لارې د الله ➢ (يعني له دين حج او يا عمرې څخه) بېشکه دوی بد کار دي هغه شی چې وو دوی چې کاوه به يې (هغه دادی چې) نه ګوري (نه ساتي لحاظ نه کوي) دغه عهد ماتونکي په (حق د هېڅ) مؤمن کې د قرابت (يا دقسم) او نه د عهد او دغه کسان هم دوی دي تېريدونکي (له حده په شرارت کې) نو که توبه يې وويسته (دوی له کفره) او قائم کړ دوی (سم ئې اداء کړ سره له ټولو حقونو) لمونځ او ورکړو دوی زکات نو ورونه ستاسې دي په دين (حکم د شريعت) کې او په تفصيل بيانوو مونږ آيتونه (حکمونه د قرآن) د پاره د هغه قوم چې هغوی پوهيږي (او فکر پکې کوي)

يعني که اوس له کفر نه توبه وباسي او ديني احکام لکه (مونځ زکات او نور ) په ځای کړي نو نه يوازې دا چې په آينده کې به د مسلمانانو

[1] سورة التوبة آية ٩-١١

له لوري په امن کې شي بلکه په اسلامي دين کې به هم شامل شي او د ټولو هغه حقونو مستحقين به شي چې نور مسلمانان يې مستحق دي .

## لا إله إلا الله انسان له اور نه وباسي

يعني دا کلمه چې څوک وايي او ايمان يې وربانديې راوړی وي د ايمان په مقتضياتو باندې عمل کوي نو الله ➢ به هغه په اور کې نه پرېږدي حضرت انس ابن مالک ❽ فرمايي ما د رسول الله ♈ څخه واورېدل چې هغه فرمايل : يقول الله : وعزتي وجلالي وکبريائي وعظمتي لأخرجن منها من قال لا إِلَـهَ إِلاُّ الله[1]

ترجمه : الله ➢ فرمايي زما د په خپل عزت ، لويي او لوی والي او عظمت باندې قسم وي چې زه به له اور نه هر هغه څوک را وباسم چې هغه ويلي وي لا إله إلا الله .

---

[1] الصحيحين

## لا إِلَـهَ إِلاّ الله د رسول الله د شفاعت سبب كيږي

د حضرت ابي هريره ❽ نه روايت دى هغه فرمايي : ما له رسول الله ♈ څخه پوښتنه وكوله : د قيامت په ورځ به ستا د شفاعت نېكبختي چاته رسيږي؟

رسول الله ♈ راته وويل : ما چې د څه وخت نه د حديثو په اړه ستا حرص ليدلى دى ما ويل چې لتا څخه به وړاندې څوک لما څخه پدې اړه پوښتنه ونه كوي د قيامت په ورځ به زما د شفاعت نېكبختي هغه چاته رسيږي چې د زړه نه ووايي لا إله إلا الله .[1]

رسول الله ♈ فرمايي : فإن الله قد حرم على النار من قال لا إله إلا الله يبتغي بذلك وجه الله

ترجمه : بېشكه الله ➢ په اور باندې هغه څوک حرام كړي دي چې د الله ➢ د رضا لپاره لا إله إلا الله ووايي .

## لا إله إلا الله بازار ته د ننوتلو په وخت

د حضرت عمر ❽ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : څوک چې بازار ته ننوزي او په

[1] صحيح البخاري

ننوتلو كې ووايي لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو حي لا يموت بيده الخير وهو على كل شيء قدير الله ➢ ورته زر زره نيكى ليكي او زر زره ګناهونه به ترې لرې كړي او زر زره درجې به ورته لوړې كړي .[1]

## په لا إله إلا الله سره الله ➢ ګناهونه معاف كوي

د حضرت عبد الله بن عمر ❽ څخه روايت دى هغه فرمايي ما درسول الله ♈ څخه واورېدل چې هغه فرمايل : چا چې وويل لا إله إلا الله والله أكبر والحمد لله وسبحان الله ولا حول ولا قوة إلا بالله نو د هغه ګناهونه كه لكه د سمندر د ځګ دومره هم وي الله ➢ به يې ورته معاف كړي .[2]

د حضرت ابي بكر الصديق ❽ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : «عَلَيْكُمْ بلا اله إلا الله، والاسْتِغْفَارِ، فأكثِروا مِنهُما، فإنَّ إبْلِيسَ قَالَ: أَهْلَكْتُ النَّاسَ بالذُّنُوبِ، وأهْلَكُونِي بِلا إله إلا الله والاسْتِغْفَارِ، فَلمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ أَهْلَكْتُهُمْ بأَلاهْوَاءِ، وهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ[3]

---

[1] صحيح الترمذي
[2] رواه احمد
[3] أخرجه أبو يعلى كما في الدر المنثور

ترجمه : تاسې لا إله إلا الله او استغفار ډېر وایاست ځکه ابلیس وایي ما خلک په ګناهونو باندې هلاک کړل او زه یې په لا إله إلا الله او استغفار سره هلاک کړم او زه چې دا ووینم نو دوی په خواهشاتو باندې هلاک کړم دوی بیا هم فکر کوي چې دوی په سمه لاره دي .

## لا إله إلا الله ویل بهترین عمل

حضرت ام هانئ رضی الله عنها د حضرت علي ابن ابي طالب ❽ لور فرمایي : رسول الله ♈ فرمایل :

**لا إله إلا الله لا يَسْبِقُهَا عَمَلٌ وَلا تَتْرُكُ ذَنْبًا** [1]

ترجمه : لا إله إلا الله (چې په اخلاص سره وویله شي) نه ترینه په ثواب کې کوم عمل مخکې کېدلی شي او نه ګناه په انسان باندې پرېږدي .

د حضرت ابي المنذر الجهني ❽ څخه روایت دی هغه فرمایي ما رسول الله ♈ ته وویل : ماته غوره کلام را وښایه رسول الله ♈ راته وفرمایل :

په ورځ کې سل ځله ووایه : **لا اله إلا الله، وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ، وَلَهُ الحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ بِيَدِهِ الخَيْرُ، وَهُوَ عَلى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ** نو پدې ورځ لتا څخه څوک د غوره عمل کونکی نشته مګر هغه کس به وي چې هغه هم همدا

---

[1] رواه ابن ماجه

کلمه سل ځله ویلې وي او **سُبْحَانَ الله، والحَمْدُ لله، ولا اله إلا الله، ولا حَوْلَ ولا قُوَّةَ إلاَّ بالله** ډېر وايه دا سيد الاستغفار ده او د ګناهونو ختمونکې ده.[1]

## لا إلــه إلا اللّه د ځانکدن په وخت کې

رسول اللّه ♈ حضرت ابي هريره ❽ ته فرمايل : **يا أَبَا هُرَيْرَةَ لَقِّنِ المَوْتَى شَهَادَةَ أَنْ لا إله إلا الله فَإِنَّها تَهْدِمُ الذُّنُوبَ هَدْماً**

ترجمه : ای ابا هريره هغه کس چې مړ کيږي په ځانکدن کې ورته د لا إلــه إلا اللّه تلقين ورکوه ځکه دا ګناهونه ړنګوي ړنګول حضرت ابو هريره ❽ فرمايي ما ورته وويل د مړيو لپاره دا ګناهونه ختمونکی کلمه ده نو د ژونديو لپاره پدې کې څه دي؟

رسول اللّه ♈ راته وويل : **هِيَ أَهْدَمُ وَأَهْدَمُ** د ژونديو په حق کې دا ډېره د ګناهونو ختمونکې ده .

---

[1] قال الهيثمي في المجمع

د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی هغه فرمایي :

قالَ رسولُ الله ♈ : «لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ شَهَادَةَ أَنْ لا اله إلا الله، فَمَنْ قَالَها عِنْدَ مَوْتِهِ وَجَبَتْ لَهُ الجَنَّةُ»، قالُوا: يا رسولَ الله فَمَنْ قَالَها فِي صِحَّتِهِ؟ قالَ: «تِلْكَ أَوْجَبُ وأَوْجَبُ» ثمَّ قالَ: «والَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ جِيءَ بالسَّمَاواتِ وأَلارْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، ومَا بَيْنَهُنَّ، ومَا تَحْتَهُنَّ، فَوُضِعْنَ في كَفَّةِ المِيزَانِ، وَوُضِعَتْ شَهَادَةُ أَنْ لا إله إلا الله في الكَفَّةِ أُلاخْرى لَرَجَحَتْ بِهِنَّ . [1]

ترجمه : رسول الله ♈ وفرمایل : خپلو مړو ته په خوله کې د مرګ په وخت کې لا إله إلا الله کلمه ورکړئ څوک چې د مرګ په وخت کې دا کلمه ووایي هغه ته جنت واجبیږي صحابه وو ورته وویل : یا رسول الله ♈ هغه څوک چې د صحت په حالت کې یې ووایي د هغه لپاره څه دي؟ رسول الله ♈ وویل په هغه صورت کې خو جنت ښه واجبوي بیا یې وفرمایل : زما د قسم په هغه ذات وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی که اسمانونه او زمکه او هغه چې په اسمانونو او زمکه کې دي او هغه چې د دوی په مینځ کې دي او هغه چې تردوی لاندې دي راوړل شي د تلې په یوه پله کې کېښودل شي او د لا إله إلا الله ګواهي په بله پله کې کېښودل شي نو د کلمې پله به درنده شي .

[1] رواه الطبراني

## لا إلــه إلا الله ايـمـان تــازه كــوي

د حضرت ابـي هريـره ❽ نـه روايـت دى هغه فـرمـايـي : أن النبي صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال: «جَدِّدُوا إِيْمَانَكُمْ» قـيـل: يـا رسـول الله ♈ ، وكـيـف نـجـدد إيـمـانـنـا؟ قـال: «أَكْثِرُوا مِنْ قَوْلِ لا إله إلا الله »[1]

ترجمه : بـېشكـه نـبـي ♈ وفـرمـايـل خـپـل ايـمـانـونـه نـوي كـړئ چـا ورتـه وويـل يـا رسـول الله ♈ خـپـل ايـمـانـونـه څـنـګـه نـوي كـړو؟ رسـول الله ♈ ورتـه و فـرمـايـل لا إلـه إلا الله ډيـر وايـاست .

---

[1] أخرجه الإمـام أحمد فـي الـمسند

# تر زمکو او اسمانونو څخه زيات وزن

د حضرت ابي سعيد الخدري ❽ نه روايت دی رسول الله ♈ فرمايل :

**قالَ مُوسى ⌨ : يا ربِّ عَلِّمْنِي شَيْئاً أَذْكُرُكَ بِهِ وَأَدْعُوكَ بِهِ، قالَ: يا موسى قُلْ: لا اله إلا الله، قال: يا ربِّ كُلُّ عِبادِك يَقولُ هاذا، قالَ: قُلْ لا اله إلا الله، قالَ: لا إِلهَ إلاّ أَنْتَ يا رَبّ، إِنّما أُرِيد شَيْئاً تَخُصُّني بِهِ، قالَ: يا موسى لَوْ كانَتِ السَّمواتُ السَّبْعُ وعامِرُهُنَّ غَيْري وَالأَرْضِينَ السَّبْعُ في كَفَّةٍ وَلا إله إلا الله في كَفَّةٍ مالَتْ بِهِنَّ لا إله إلا الله** [1]

ترجمه : موسى ⌨ وويل : ای الله ➢ ماته داسې شی را وښيه چې تا وربانديې ياد کړم او لتا څخه وربانـد دعا وغواړم الله ➢ ورته و فرمايل : لا إله إلا الله ووايه حضرت موسى ⌨ ورته وويل : ستا ټول بندګان همدا وايي الله ➢ ورته وفرمايل : لا إله إلا الله ووايه موسى ⌨ وويل : لا اله الا انت يا رب زه داسې يو شی غواړم چې ما وربانديې خاص کړې الله ➢ ورته وفرمايل : موسى که چېرته اوه اسمانونه او زما نه بغير (که فرضا وي) دهغې جوړونکی او اوه زمکې په يو

---

[1] رواه الحاكم فی المستدرک

لاس کې کېښودل شي او لا إلـه إلا الله پـه بـل لاس کې کېښودل شي نـو د لا إلـه إلا الله لاس بـه ښکتـه (درونـد) شـي .

## د لا إلـه إلا الله وزن پـه مـيزان کـې

د حضرت عبد الله بـن عمرو بـن الـعاص رضی الله عنـهما څخه روايـت دی هغه فـرمـايـي : مـا لـه رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فـرمـايـل يـې:

➢ د قـيامـت پـه ورځ بـه د خلکو پـه وړانـدې الله زمـا د امت نـه يـو کس راولـي او د هغه پـه وړانـدې بـه ۹۹ کتـابـونـه را خپاره کړي (چې بد اعمال بـه پـکې لـيکلي وي) او هر يـو کتـاب بـه دومره لـوی وي چې تـر څومره پـورې نظر کـار کـوي بـيا بـه بـنده تـه ووايـي : پـدې کـې داسې څه شی لـيکل شوي چې تـاتـه پـه يـاد نـه وي؟ بـنده بـه ووايـي نـه يـا ربـه .. بـيا بـه الله ➢ ورتـه ووايـي ددې گـناهـونـو پـه کـولـو کې ستـا څه عذر وو؟ هغه بـه ورتـه ووايـي نـه يـا ربـه بـيا بـه الله ورتـه ووايـي هو لـه مـونږ سره ستـايـوه نـيکي شتـه او پـه تـا بـانـدې بـه نـن ظلم نـه کـيږي يـو کـارت بـه را وبـاسي چې وربـانـدې لـيکلي وي **أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَه إِلا الله وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ** بـيا بـه وويـل شي چې راوړه خپل وزن دې (يـعني دا د نېکو عملـونـو کـارت دې چې کـلمه وربـانـدې لـيکل شوېده پـه تـلـه کې کېږده) بـنده بـه ووايـي دا

کارت به لدې کتابونو سره څه شي؟ الله ➢ به ورته ووايي : په تا باندې ظلم نه کيږي رسول الله ♈ و فرمايل بيا په کتابونه په يوه پله کې کيږدي او هغه کارت چې کلمه وربانديې ليکلې وه (چې بنده ويلې وه) هغه به په بله پله کې کيږدي په کومه پله کې يې چې کارت ايښی وو هغه به درنده شي د الله ➢ له نوم څخه هېڅ شی هم نه درنيږي .[1]

## په ميزان کې پنځه وزن لرونکي شيان

د حضرت ثوبان ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : **بَخٍ بَخٍ لِخَمْسٍ، مَا أَثْقَلَهُنَّ فِي المِيزَانِ: لا اله إلا الله، وسُبْحَانَ الله، والحَمْدُ الله، واللهُ أَكْبَرُ، والوَلَدُ الصَّالِحُ يَمُوْتُ لِلمَرْءِ فَيَحْتَسِبُهُ**[2]

ترجمه : واه واه د پنځو لپاره څومره په تله کې درانده دي : لا إله إلا الله ، سبحان ا لله ، الحمد لله او الله اکبر او نېک زوی چې مړ شي او بيا دی وربانديې صبر وکوي .

## لا إله إلا الله د اسمانونو کلی

---

[1] رواه الترمذي
[2] رواه البزار

د حضرت معقل ابن يسار ❽ نه روايت دى هغه فرمايي : رسول الله ♈ فرمايل : **لكُلِّ شَيءٍ مِفْتَاحٌ، ومِفْتَاحُ السَّمَاوَاتِ قَوْل: لا إله إلا الله** [1]

ترجمه : د هرشي لپاره يوه کلى وي او د اسمانونو کلى لا إله إلا الله ويل دي .

## عرش ته رسيدونکي کلمه

د حضرت معاذ ابن جبل ❽ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : **كَلِمَتَانِ إِحْدَاهُمَا لَيْسَ لَهَا نَاهِيَةٌ دُونَ العَرْشِ، وأُلاخْرَى تَمْ ُلأ مَا بَيْنَ السَّماءِ وأَلارْضِ، لا اله إلا الله، والله أَكْبَرُ . .** [2]

ترجمه : دوه کلمې دي يوه يې (چې وويله شي) تر عرش نه وړاندې نه دريږي او بله يې د زمکې او اسمان مينځ ډکوي لا إله إلا الله او الله أَكْبَرُ.

د حضرت عبد الله بن عمر ❽ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل :

**التَّسْبِيحُ نِصْفُ المِيزَانِ، والْحَمْدُ لله يَمْلَؤُهُ، وَلا إله إلا الله لَيْسَ لَهَا دُونَ الله حِجَابٌ حَتَّى تَخْلُصَ إِلَيْهِ .** [3]

ترجمه : تسبيح نيم ميزان دى (د نېکو عملونو تله تر نيمې پورې ډکوي او الحمد لله يې ډکوي او

---

[1] رواه الطبراني
[2] رواه الطبراني
[3] رواه الترمذي

د لا إلــه إلا الله او الله ➢ پـه مـيـنـځ کـې حجـاب نـشـتـه تـرڅـو چـې الله ➢ تـه رسېدلـې نـه وي (چـې لـوسـتـونـکـی يـې ووايـي نـو الله ➢ تـه سيـده ور رسيـږي او هـېڅ شی يـې الله ➢ تـه لـه رسېدلـو نـشي مـنـع کـولـی )

د حضرت جابـر بـن عبـد الله ❽ نـه روايـت دی هـغـه فـرمـايـي مـا لـه رسـول الله ♈ څخه واورېدل چـې هـغـه فـرمـايـل :

## لا إلــه إلا الله بــهـتـريـن ذکـر او غـوره دعـا

**أَفْضَلُ الذِّكْرِ لا اله إلا الله، وَأَفْضَلُ الدُّعَاءِ الحمْدُ لله .** [1]

تـرجـمـه : غـوره ذکـر لا إلــه إلا الله دی او غـوره دعـا الـحـمـد لله ده .

حضرت عمـر ابـن شعيـب ❽ لـه خـپـل پـلار نـه روايـت کـوي هـغـه دده لـه نـيـکـه څخه روايـت کـړی دی چـې رسـول الله ♈ فـرمـايـل :

**خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ، وَخَيْرُ مَا قُلْتُ أنَا والنَّبِيُّونَ مِنْ قَبْلِي: لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَديرٌ .** [2]

تـرجـمـه : غـوره دعـا د عـرفـات د ورځې دعـا ده او غـوره هـغـه څـه چـې مـا او زمـا نـه وړانـدې انـبـيـاوو

---

[1] رواه الـتـرمـذي
[2] اخرجه الامـام مـالـک فـی الـمـوطـاء

ويلي دي هغه دا كلمه ده : لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَديرٌ

د حضرت ابي سعيد خدري ❽ او حضرت ابي هريره ❽ څخه روايت دی دوی فرمايي رسول الله ♈ فرمايل :

إِنَّ اللهَ اصْطَفى مِنَ الكَلامِ أَرْبَعاً: سُبْحَانَ الله، والحَمْدُ لله، ولا اله إلا الله، والله أَكْبَرُ، فَمَنْ قَالَ: سُبْحَانَ الله كُتِبَ لَهُ عِشْرُونَ حَسَنَةً، وَحُطَّتْ عَنْهُ عِشْرُونَ سَيِّئَةً، ومَنْ قَالَ: الحَمْدُ لله، فَمِثْلُ ذَلِكَ، ومَنْ قَال: لا اله إلا الله، فَمِثْلُ ذَلِكَ، ومَنْ قَالَ الله أَكْبَرُ مِنْ قِبَلِ نَفْسِهِ، كُتِبَتْ لَهُ ثَلاثُونَ حَسَنَةً، وحُطَّتْ عَنْهُ ثَلاَثُونَ سَيِّئَةً . 1

ترجمه : الله ➢ له كلام څخه څلور كلمې غوره كړې دي سُبْحَانَ الله، الحَمْدُ لله، لا إله إلا الله اوالله أَكْبَرُ چا

➢ چې سبحان الله وويل الله ورته شل نيكۍ ليكي او شل ګناهونه ورڅخه لرې كوي چا چې الحمد لله وويل نو په هدې ډول او چا چې لا إله إلا الله وويل نو په همدې ډول او چا چې الله اكبر له خپله ځانه وويل نو هغه ته دېرش نيكۍ ليكل كيږي او دېرش ګناهونه يې لرې كول كيږي .

لا إله إلا الله غوره كلام

---

1 رواه أحمد والبزار

د حضرت سمرة ❽ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : أَفْضَلُ الكَلاَمِ بَعْدَ القُرْآنِ، وَهي مِنَ القُرْآنِ أَرْبَعٌ، لا يَضُرُّكَ بِ◌ايِّهِنَّ بَدَأْتَ: سُبْحَانَ الله، والحَمْدُ لله، ولا اله إلا الله، والله أَكْبَرُ .[1]

ترجمه : د قرآن کریم نه وروسته غوره کلامونه چې هغه هم له قرآن څخه دي څلوري دي چې په هر یو باندې شروع کوې پروا یې نشته (ترتیب پکې ضروري نه دی) سُبْحَانَ الله، والحَمْدُ لله، ولا اله إلا الله، والله أَكْبَرُ

د حضرت عبد الله ابن عمر ❽ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : لَيْسَ عَلَى أَهْلِ لا إله إلا الله وَحْشَةٌ فِي قُبُورِهِمْ وَلا مَنْشَرِهِمْ ، وكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَي أَهْلِ لا إله إلا الله وهم يَنْفُضُونَ التُّرَاب عَنْ رُؤُوسَهُمْ وَيَقُولُونَ: الحَمْدُ لله الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الحَزَنَ .[2]

ترجمه : د لا إله إلا الله په اهل باندې به وحشت (ویره نه وي) نه په قبرونو کې او نه د را پاڅېدلو په وخت کې ماته داسې محسوس کیږي لکه زه چې همدا اوس ګورم چې د لا إله إلا الله خلک (را پاڅېدلي وي) له سرونو څخه خاورې څنډي او وایي حمد ثنا ده هغه ذات لره چې له مونږ څخه یې خفګان لرې کړو .

[1] رواه الإمام أحمد في المسند
[2] رواه الطبرني في الأوسط

الله ➢ به لا إله إلا الله ویونكي له اوره و باسي

حضرت انس ❽ فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : **يَقولُ الله عَزَّ وَجَلَّ: أَخْرِجوا مِنَ النّارِ مَنْ قالَ: لا إله إلا الله وَفي قَلْبِهِ مِثْقال ذَرَّةٍ مِنَ الإيمانِ، أَخْرِجوا مِنَ النّارِ مَنْ قالَ: لا إله إلا الله أَوْ ذَكَرَني أَوْ خَافَني فِي مَقامٍ .** [1]

ترجمه : الله ➢ فرمایي له اور نه وباسئ هغه كسان چې ویلي یې وي لا إله إلا الله او په زړه كې یې یوه ذره د ایمان وي او وباسئ له اور څخه هغه چې ویلي یې وي لا إله إلا الله او یا یې زه یاد كړی وم او یا په كوم ځای كې لما څخه ډار شوی وي .

حضرت ابو هریره ❽ فرمایي یوه ورځ رسول الله ♈ زما په خواكې پداسې حال كې تېرېدو چې ما نیال لګول رسول الله ♈ راڅخه پوښتنه وكوله : څه شی ل كوې؟ ما ورته وویل خپل نیال لګوم بیا رسول الله ♈ راته وویل ای ابا هریره تردې غوره نیال درته ونه ښیم؟ ما ورته وویل هو را ته ویې ښایه یا رسول الله ♈ بیا رسول الله ♈ وفرمایل : **سُبْحَانَ الله، ◌َالْحَمْدُ لله، ◌َلا اله إلا الله، ◌َالله**

---

[1] أخرجه الحاكم في المستدرك

أَكْبَرُ وايه الله ➢ به درته د هر يو په بدل کې په جنت کې يوه ونه ايږدي .[1]

لا إله إلا الله په قرآن کريم کې

په قرآن کريم کې لا إله إلا الله ۳۷ ځله تکرار شويده په لاندې ترتيب

وَإِلَـهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ [2]

اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ [3]

اللّهُ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ [4]

هُوَ الَّذِي يُصَوِّرُكُمْ فِي الأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ [5]

الْعِلْمِ قَآئِمَاً بِالْقِسْطِ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ [6]

اللّهُ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لاَ رَيْبَ فِيهِ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللّهِ حَدِيثاً [7]

---

1 رواه ابن ماجه
2 سورة البقرة آية ١٦٣
3 سورة البقرة آية ٢٥٥
4 سورة آل عمران آية ٢
5 سورة آل عمران آية ٦
6 سورة آل عمران آية ١٨
7 سورة النساء آية ٧٨

ذَلِكُمُ اللّهُ رَبُّكُمْ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ [1]

اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ [2]

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعاً الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ يُحْيِـي وَيُمِيتُ فَآمِنُواْ بِاللّهِ وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الأُمِّيِّ الَّذِي يُؤْمِنُ بِاللّهِ وَكَلِمَاتِهِ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ [3]

لَّقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُواْ إِنَّ اللّهَ ثَالِثُ ثَلاَثَةٍ وَمَا مِنْ إِلَـهٍ إِلاَّ إِلَـهٌ وَاحِدٌ وَإِن لَّمْ يَنتَهُواْ عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ [4]

اتَّخَذُواْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَاباً مِّن دُونِ اللّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُواْ إِلاَّ لِيَعْبُدُواْ إِلَـهاً وَاحِداً لاَّ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ [5]

فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُلْ حَسْبِيَ اللّهُ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ [6]

وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُ بَغْياً وَعَدْواً حَتَّى إِذَا أَدْرَكَهُ الْغَرَقُ قَالَ آمَنتُ أَنَّهُ لا إِلِـهَ إِلاَّ الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ وَأَنَاْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ [1]

---

[1] سورة الانعام آية ١٠٢
[2] سورة الانعام آية ١٠٦
[3] سورة الاعراف آية ١٥٨
[4] سورة المائدة آية ٧٣
[5] سورة التوبة آية ٣١
[6] سورة التوبة آية ١٢٩

فَإِن لَّمْ يَسْتَجِيبُواْ لَكُمْ فَاعْلَمُواْ أَنَّمَا أُنزِلِ بِعِلْمِ اللّهِ وَأَن لاَّ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ [2]

كَذَلِكَ أَرْسَلْنَاكَ فِي أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهَا أُمَمٌ لِّتَتْلُوَ عَلَيْهِمُ الَّذِيَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمَـنِ قُلْ هُوَ رَبِّي لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ [3]

يُنَزِّلُ الْمَلآئِكَةَ بِالْرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ أَنْ أَنذِرُواْ أَنَّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ أَنَاْ فَاتَّقُونِ [4]

اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَهُ الْأَسْمَاء الْحُسْنَى [5]

إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي [6]

إِنَّمَا إِلَهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْماً [7]

وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ [8]

وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِباً فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَى فِي الظُّلُمَاتِ أَن لَّا إِلَهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ [9]

فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ [10]

---

[1] سورة يونس آية ٩٠
[2] سورة هود آية ١٤
[3] سورة الرعد آية ٣٠
[4] سورة النحل آية ٢
[5] سورة طه آية ٨
[6] سورة طه آية ١٤
[7] سورة طه آية ٩٨
[8] سورة الانبياء آية ٢٥
[9] سورة الانبياء آية ٨٧
[10] سورة المؤمنون آية ١١٦

اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ [1]

وَهُوَ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْأُولَى وَالْآخِرَةِ وَلَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ [2]

وَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَهاً آخَرَ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ لَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ [3]

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ [4]

إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لا إله إلا الله يَسْتَكْبِرُونَ [5]

خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَأَنزَلَ لَكُم مِّنْ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ خَلْقاً مِن بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُصْرَفُونَ [6]

غَافِرِ الذَّنبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ [7]

ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَّا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ [8]

هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ [1]

---

[1] سورة النمل آية ٢٦
[2] سورة القصص آية ٧٠
[3] سورة القصص آية ٨٨
[4] سورة فاطر آية ٣
[5] سورة الصافات آية ٣٥
[6] سورة الزمر آية ٦
[7] سورة غافر آية ٣
[8] سورة غافر آية ٦٢

لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ [2]

فَاعْلَمْ أَنَّهُ لا إله إلا الله وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ [3]

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ [4]

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ [5]

اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ [6]

رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلاً [7]

---

[1] سورة غافر آية ٦٥
[2] سورة الدخان آية ٨
[3] سورة محمد آية ١٩
[4] سورة الحشر آية ٢٢
[5] سورة الحشر آية ٢٣
[6] سورة التغابن آية ١٣
[7] سورة المزمل آية ٩

## د لا إلــه إلا الله ويــل

پـه لانـدې ځـايـونـو کې د لااله الا الله ويل سنت دي .

## پــه سبــا او بـېګـاه کـې

حضرت ابـو بـکـر صديـق ❽ رسـول الله ♈ تـه وويـل :
يـا رسـول الله ♈ مـاتـه داسې څـه شی را وښيـه چې پـه سبـا او بـيګـا کې يې وايـم رسـول الله ♈ ورتـه وويـل : ای ابـا بـکـره پـه سبـا او بـيګـا کې وايـه :

اللهمَّ فَاطِرَ السَّماوَاتِ وَالأَرْضِ عَالِمَ الغَيْبِ والشَّهَادَةِ لاَ إلَهَ إلاّ أَنْتَ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ، أعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي، ومِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ، وَأَنْ أَقْتَرِفَ عَلَى نَفْسِي سُوءًا أوْ أَجُرَّهُ إِلى مُسْلِمٍ [1]

## د اوداسه څـخه وروستـه

د حضرت عمر ابـن الـخطاب ❽ څخه روايـت دی هغه فـرمـايـي : رسـول الله ♈ فـرمـايـل څوک چې اودس وکـوي او بـيـا دا دعـا ولـولـي :

أَشْهَدُ أنْ لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، وأشْهَدُ أنَّ مُحمَّداً عَبْدُهُ ورَسُولُهُ. اللهمَّ اجْعَلني مِنَ التَّوَّابينَ، وَاجْعَلْنِي مِنَ المتَطَهِّرِينَ

دده لـپـاره د جنت آتـه دروازې خلاصې شي دده خوښه ده چې لـه هرې دروازې څخه ننـوزي [2]

د حضرت عثمـان ابـن عفـان ❽ څخه روايـت دی هغه فـرمـايـي مـا د رسـول الله ♈ څخه واوريـدل چې هغه

[1] رواه الـبخاري
[2] رواه الـترمذي

ويـل : مَنْ تَوَضَّا فغَسَلَ يَدَيْهِ ثمَّ مَضْمَضَ ثلاثاً واستنشَقَ ثلاثاً، وغَسَلَ وجْههُ ثلاثاً، ويدَيْهِ إِلى المِرْفَقَيْنِ، ومَسَحَ برَأْسِهِ، ثمَّ غَسَلَ رجْلَيْهِ، ثمَّ لم يتكلَّمْ حتّى يقول: أَشْهَدُ أَنْ لا إله إلا الله وَحدَهُ لا شَرِيكَ لهُ وأَنَّ محمّداً عبدُهُ ورسولُهُ، غُفِرَ لَهُ ما بَيْنَ الوضُوءَيْنِ .[1]

ترجمه : چا چې اودس وکولو خپل لاسونه يې درى ځله وويـنځل او په خوله يې اوبه درى ځله تېرې کړې او په پوزه يې اوبه د رى ځله تېرې کړې او مخ يې درى ځله وويـنحلو او لاسونه يې تر څنګلو پورې وويـنځل په سر يې مسح وکوله بيا يې پښې وويـنځلې او بيا يې مخکې ددې چې خبرې وکوي دا کلمه وويله : أَشْهَدُ أَنْ لا إله إلا الله وَحدَهُ لا شَرِيكَ لهُ وأَنَّ محمّداً عبدُهُ ورسولُهُ ده چې د دوو اودسونو په مينځ کې کومې ګناه ګانې کړې وي هغه به ورته و بښل شي .

[1] رواه أبو يعلى

# د اذان په وخت کې

د حضرت عمر ابن الخطاب ❽ څخه روایت دی هغه فرمایي : رسول الله ♈ فرمایل : إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ: اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ. فَقَالَ أَحَدُكُمْ: اللهُ أَكْبَرُ الله أَكْبَرُ. ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لا اله إلا الله. قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لا اله إلا الله. ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً رَسُولُ الله. قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً رَسُولُ الله. ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ. قَالَ: لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ باالله. ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ. قَالَ: لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِالله. ثُمَّ قَالَ: الله أَكْبَرُ الله أَكْبَرُ. قَالَ: الله أَكْبَرُ الله أَكْبَرُ. ثُمَّ قَالَ: لا اله إلا الله. قَالَ: لا اله إلا الله، مِنْ قَلْبِهِ دَخَلَ الْجَنَّةَ [1]

ترجمه : کله چې مؤذن اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ ووایي او په تاسې کې هم یو کس د مؤذن سره اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ ووایي بیا چې کله مؤذن ووایي أَشْهَدُ أَنْ لا إله إلا الله دا کس هم همدا ورسره ووایي بیا چې مؤذن ووایي أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً رَسُولُ الله نو دا کس ورسره همدا ووایي بیا چې موذن ووایي حَيَّ عَلَى الصَّلاَةِ دا کس ورسره ووایي لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ باالله بیا چې مؤذن ووایي حَيَّ عَلَى الْفَلاَحِ دا کس ورسره ووایي لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِالله بیا چې مؤذن ووایي الله أَكْبَرُ الله أَكْبَرُ دا کس هم ورسره ووایي الله أَكْبَرُ الله أَكْبَرُ او بیا چې کله

[1] رواه مسلم

مؤذن ووايي لا إله إلا الله نو دا كس هم ورسره له زړه څخه ووايي لا إله إلا الله دا كس به جنت ته ننوزي .

## د سحر او ماښام د مانځه نه وروسته

حضرت فاطمه رضى الله عنها رسول الله ﷺ ته راغله د خپل ژوند د مشكلاتو شكايت يې ورته كولو چې د كور كار رابانديې ډېر زيات دى يو ځل په مېچن باندې اوړه كوم او بيا هغه خېشته كوم او بيا هغه پخوم لاسونه مې د زيات كار له امله خراب شوي دي كه چېرته كېداى شي مونږ ته يو خادم راكړې؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : إنْ يَرْزُقْكِ الله شَيْئاً يَأْتِكِ، وسَأَدُلُّكِ عَلى خَيْرٍ مِنْ ذَلِكَ، إِذَا لَزِمْتِ مَضْجَعَكِ فَسَبحِي الله ثلاثاً وثَلاثينَ، وكَبِّرِي ثَلاثاً وثَلاثينَ، واحْمَدِي أَرْبَعاً وثَلاثينَ، فَذَلِكَ مِائَةٌ، خَيْرٌ لَكِ مِن الخَادِمِ، وإِذَا صَلَّيْتِ الصُّبْحَ فَقُولِي: لا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ، ولَهُ الحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ بِيَدِهِ الخَيْرُ، وَهُوَ عَلى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، عَشْرَ مَرَّاتٍ بَعْدَ صَلاةِ الصُّبْحِ، وعَشْرَ مَرَّاتٍ بَعْدَ صَلاةِ المَغْرِبِ، فِانّ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُنَّ تُكْتَبُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ، وَتَحُطُّ عَشْرَ سَيِّئَاتٍ، وكُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُنَّ كَعَتْقِ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، ولا يَحِلُّ لِذَنْبٍ كُتِبَ ذَلِكَ اليَوْمَ أَنْ يُدْرِكَهُ إِلاَّ أَنْ يَكُونَ الشِّرْكُ، لا إله

إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، وهو حَرَسُكِ مَا بَيْنَ أَنْ تَقُولِيهِ غُدْوَةً إِلى أَنْ تَقُولِيهِ عَشِيَّةً مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ ومِنْ كُلِّ سُوءٍ»[1]

ترجمه : الله ➢ چې تاته څه شی در روزي کړي هغه به درته راشي زه تاته لدې (خادم) څخه غوره شی ښیم کله چې د خپل ډډه لګولو ځای ته لاړې هلته ۳۳ ځله سبحان الله ووایه ۳۳ ځله الله اکبر ووایه ۳٤ ځله الحد لله ووایه (په ځینو روایاتو کې الله اکبر ۳٤ دی) نو دا سل پوره شول دا تاته له خادم نه غوره دي کله د چې د سحر مونځ وکولو نو دا کلمه لس ځله ووایه لا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ، ولَهُ الحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ بِيَدِهِ الخَيْرُ، وَهُوَ عَلى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ او دا د سحر د مانځه نه وروسته هم لس ځله وایه او د ماښام د مانځه نه یې وروسته هم لس ځله وایه ځکه دا هرځل چې ته وایې تاته لس نیکی لیکل کیږي او لس ګناهونه لرې کول کیږي او هره یوه دومره ثواب لري لکه د اسمعیل ⌨ له اولاد څخه دې چې یو غلام ازاد کړی وي د شرک نه بغیر بله ګناه ددې د ثواب سره مقابله نشي کولی لا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ دا کلمه چې ته سحر ووایې تر ماښام پورې او چې ماښام یې ووایې تر سهار پورې له هر شیطان او بد شي څخه ستا ساتنه کوي .

---

[1] رواه أحمد والطبراني

د حضرت عمارة بن الشيب السبائي ❽ نه روايت دى هغه فرمايي : قالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم: «مَنْ قالَ لا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ عَشْرَ مَرَّاتٍ عَلَى إِثْرِ الْمَغْرِبِ بَعَثَ الله مُسَلَّحَةً يَحْفَظُونَهُ مِنَ الشَّيْطَانِ حَتَّى يُصْبِحَ، وَكَتَبَ الله لَهُ بِهَا عَشْرَ حَسَنَاتٍ مُوجِبَاتٍ، ومَحى عَنْهُ عَشْرَ سَيِّئَاتٍ مُوبِقَاتٍ، وَكانَتْ لَهُ بِعَدْلِ عَشْرِ رِقَابٍ مُؤْمِنَاتٍ .[1]

ترجمه : رسول الله ﷺ فرمايل : چا چې د ماښام د مانځه نه وروسته وويل وويل لا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

➢ الله به ساتونكي را وليږي چې دى په د شيطان څخه تر سهاره پورې ساتي او پدې سره به ده ته لس جنت ته ننه ايستونكې نيكيانې وليكي او لس د عذاب وركونكې ګناهونه به ورڅخه لرې كړي او ده ته به دومره ثواب وركول كيږي لكه لس غلامان يې چې ازاد كړي وي .

[1] رواه الترمذي

## د هر مانځه نه وروسته

د حضرت عبد الله بن الزبير ❽ نه روايت شوى دى هغه به د هر مانځه څخه وروسته چې کله سلام وګرځولو ويل به يې : لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِالله، لا اله إلا الله، وَلاَ نَعْبُدُ إِلاَّ إِيَّاهُ. لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ. وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ. لا إله إلا الله مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ او ده رضى الله عنه به ويل چې رسول الله ♈ به د هر مانځه نه وروسته همدا کلمې ويلې.[1]

د حضرت ابي هريره ❽ نه روايت دى هغه فرمايي : رسول الله ♈ فرمايل څوک چې د هر مانځه نه وروسته ٣٣ ځله سبحان ا لله ٣٣ ځله الحمد لله او ٣٣ ځله الله اکبر ووايي نو دا يو کم سل شول د سلو د پوره کولو لپاره ورپسې ووايي : لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ دهغه کس ټول ګناهونه به وبښل شي اګر که هغه دومره ډير وي لکه د بحر په سر باندې ځګ.[2]

## په جومات کې

[1] رواه مسلم
[2] رواه مسلم

د حضرت ابي هريره ❽ نه روايت دى هغه فرمايي قالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم: «إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فارْتَعُوا: قُلْتُ: يا رَسُولَ الله وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ؟ قالَ: المَسَاجِدُ، قُلْتُ: ومَا الرَّتْعُ يَا رَسُولَ الله؟ قالَ: سُبْحَانَ الله والْحَمْدُ لله وَلا إله إلا الله وَالله أَكْبَرُ . [1]

ترجمه : رسول الله ♈ وفرمايل کله چې تاسې د جنت په باغچو باندې تېرېږئ نو پکې وڅرئ ما ورڅخه پوښتنه وکوله چې د جنت باغچې څه شی دي؟ رسول الله ♈ راته وويل جوماتونه ما ورته وويل : نو بيا هلته څرېدل څه شی دي ؟ رسول الله ♈ راته وويل سُبْحَانَ الله والْحَمْدُ لله وَلا إله إلا الله وَالله أَكْبَرُ (يعني په جوماتکې ددې کلمو ويل)

## د خطبې (تقرير) په شروع کې

د حضرت عبد الله بن عمر ❽ نه روايت دى چې رسول الله ♈ د مکې د فتح په ورځ باندې په مکه کې خطبه ويله نو په شروع کې يې درى ځله الله ا کبر وويل بيا يې وويل: لا إله إلا الله وَحْدَهُ، صَدَقَ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَ هُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ . [2]

---

[1] رواه الترمذي
[2] رواه أبو داود

د حضرت ابي هريره ❽ نه روايت دی هغه فرمايي : رسول الله ♈ فرمايل : **كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كالْيَدِ الْجَذْمَاءِ**

ترجمه :

په كومه خطبه كې چې تشهد نه وي هغه لكه شل لاس داسې دی.[1]

## په بازار كې

د حضرت عمر ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : څوک چې بازار ته ننوزي او په ننوتلو كې ووايي لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو حي لا يموت بيده الخير وهو على كل شيء قدير الله ➢ ورته زر زره نيكى ليكي او زر زره گناهونه به ترې لرې كړي او زر زره درجې به ورته لوړې كړې .[2]

---

[1] رواه الترمذي
[2] صحيح الترمذي

## د خوب نه د ويښېدلو په وخت

د حضرت عائشې رضى الله عنها څخه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ به چې کله د شپې را ويښ شو نو ويل به يې :
**لا إِلهَ إِلاَّ أَنْتَ سُبْحَانَكَ، اللَّهُمَّ أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ، اللَّهُمَّ زِدْنِي عِلْماً وَلا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي، وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحَمةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ** .[1]

## د بيت الله ، صفا او مروه د لېدل په وخت

حضرت جابر بن عبد الله ❽ محمد بن علي بن حسين ته د رسول الله ♈ د حج قصه کوله نو ورته فرمايل يې :
کله چې رسول الله ♈ صفا ته نېږدې شو نو ويې ويل **إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ** او بيا يې وويل چې په کوم شي الله ➢ شروع کړېده (الصفا) مونږ هم په سعى کې له همغې نه شروع کوو نو صفا ته وختلو تردې چې بيت الله ورته ښکاره شوه نو الله ➢ اکبر يې وويل او الحمد لله يې وويل بيا يې وويل : **لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لا إله إلا**

[1] رواه أبو داود

الله وَحْدَهُ، أَنْجَزَ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَ هُ، وَهَزَمَ الأَحْزابَ وَحْدَهُ ... د حديث تر آخره پورې .[1]

## په عرفه ، مزدلفه او نورو مقدسو ځايونو كې

د حضرت عمر بن شعيب ❽ نه روايت د ی هم له خپل نيكه څخه روايت كوي چې رسول الله ♈ فرمايل : خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ، وَخَيْرُ مَا قُلْتُ أنا والنَّبِيُّونَ مِنْ قَبْلِي: لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ [2]

ترجمه : غوره دعا د عرفې د ورځې دعا ده او غوره كلمه چې ما او پخوانيو نبيانو ويلې ده هغه داده لا إله إلا الله وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

## د غزا ، حج او عمرې نه د راګرځېدلو په وخت

د حضرت عبد الله ابن عمر ❽ څخه روايت دی هغه فرمايي چې رسول الله ♈ به كله له غزا يا حج او عمرې نه را وګرځېدو نو چې په هر لوړ ځای به ختلو نو درې ځله به يې الله اكبر ويل بيا به

---

[1] رواه أبو داود
[2] أخرجه الإمام مالك في الموطأ

يـې ويـل : لاإلهَ إلاّ اللهُ وحدَهُ لاشَريكَ له، لهُ المُلكُ ولهُ الحمدُ وهوَ على كلِّ شيءِ قدير. آيبونَ، تائبونَ، عابدونَ، ساجدونَ، لربِّنا حامدون. صدَقَ اللهُ وَعده، ونصرَ عبدَه، وهزَم الأحزابَ وحدَه .[1]

## د دعا پـه وخت کـې

د حضرت سعد ابـن ابـي وقـاص ❽ نـه روايـت دی هغـه فـرمـايـي : رسول الله ♈ فـرمـايـل چې د يـونـس ⌨ دعـا د مـاهي پـه ګېډه کې دا وه لا إِلَهَ إلاّ أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ پـدې دعـا سره چې هر مـسلمـان څه وغواړي الله ➢ هغـه دعـا ورتـه قـبلـوي .[2]

## د تـوبـې پـه وخت کـې

د حضرت ابـي ذر ❽ نـه روايـت دی هغـه فـرمـايـي : مـا رسول الله ♈ تـه وويـل مـا تـه وصيت وکـوه رسول الله ♈ راتـه وويـل إِذَا عَمِلْتَ سَيِّئَةً، فَـَاتْبِعْهَا حَسَنَةً تَمْحُهَا (يـعـني چې کـومـه ګـنـاه درڅخه وشوه ورپـسې نـېک عمل وکـوه هغـه ګـنـاه ختمـوي) مـا ورتـه وويـل : يـا رسول الله ♈ لا إلـه إلا الله ويـل هم لـه حسنـاتـو (نـېکو کـارونـو) څخه دي؟ (يـعـني کـه دا وواېـم نـو بـس کـيږي؟) رسول الله ♈ راتـه

[1] روا‌ه الـبخاري
[2] روا‌ه الـترمذي

وویل **هِيَ أَفْضَلُ الحَسَنَاتِ** (دا خو په ټولو نیکیو کې غوره نیکي ده) [1]

حضرت انس ابن مالک ❽ فرمايي : **أَنَّ رَسُول اللهِ صلى الله عليه وسلم: مَرَّ بِشَجَرَةٍ يَابِسَةِ الوَرَقِ فَضَرَبَهَا بِعَصَاهُ فَتَنَاثَرَ الوَرَقُ. فقالَ صلى الله عليه وسلم: «إنَّ الْحَمْد لله وَسُبْحَانَ الله والحمد لله ولا إله إلا الله والله أكْبَرُ لَتُسَاقِطُ مِنْ ذُنُوبِ العَبْدِ كَمَا تَسَاقَطَ وَرَقُ هذِهِ الشَّجَرَةِ .** [2]

ترجمه : رسول الله ♈ د یوې داسې ونې سره تېرېدو چې پاڼې یې وچې وې رسول الله ♈ هغه ونه په خپله همسا باندې ووهله او له هغې څخه پاڼې را تويې شوې نو رسول الله ♈ وفرمايل : بېشکه حمد ثناء الله ➢ لره دي سبحان الله ، الحمد لله لا إله إلا الله او الله اكبر د انسان ګناهونه داسې تویوي لکه ددې ونې څخه چې پاڼې تویې شوې .

[1] رواه أحمد
[2] رواه الترمذي

## د مجلس نه د پاڅېدلو په وخت

د حضرت ابي هريره ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : څوک چې په کوم مجلس کې کيني او هلته يې عبث خبرې او اوازونه زيات شي نو مخکې ددې چې ددې مجلس نه پاڅيږي دی ووايي : سُبْحَانَكَ اللهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، أَشْهَدُ أن لاَ إِلَهَ إلاّ أنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ إلاّ غُفِرَ لَهُ مَا كَانَ في مَجْلِسِهِ ذَلِكَ .[1]

نو پدې مجلس کې چې دده څخه هرشی شوي وي ده ته بښل کيږي .

## د غم او تکليف په وخت کې

د حضرت عبد الله ابن عباس ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ به په سخت حالت کې (د ويرې يا مصيبت او آفت په وخت کې) ويل : لا إله إلا الله الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ، لاإلهَ إلا اللهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، لا إله إلا الله رَبُّ السَّماواتِ وَرَبُّ الأَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ .[2]

## د خوب بسترې ته د تللو په وخت کې

د حضرت ابي سعيد الخدري ❽ نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : څوک چې بسترې ته

---

1 رواه الترمذي
2 رواه البخاري

د تـلـلـو پـه وخت کې درى ځـلـه ووايـي : **أَسْتَغْفِرُ الله العَظِيمِ الَّذِي لا إلهَ إلاَّ هُوَ الحَيُّ القَيُّومُ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ الله** بـه يـې ګـنـاهـونـه ورتـه و بـښي اګـر کـه د هغـه ګـنـاهـونـه د سيـنـد د ځګ پـه انـدازه وي او اګـر کـه هغـه د ونـو د پـاڼـو پـه انـدازه وي او اګـر کـه هغـه د ريـګ د شګو پـه انـدازه او يـا د دنـيـا د ټـولـو ورځـو پـه انـدازه وي[1]

د حضرت ابـي هريـره ❽ نـه روايـت دى هغـه فـرمـايـي حضرت ابـو بـکـر صديـق ❽ رسول الله ♈ تـه وويـل : مـاتـه څـه شى وښـايـه چې هغـه زه پـه سبـا او بـيـګـا کې وايـم رسول الله ♈ ورتـه وويـل داسې وايـه : **اللهمَّ عَالِمَ الغَيْبِ وَالشّهَادَةِ، فَاطِرَ السَّمَاواتِ والأَرْضِ، رَبَّ كُلِّ شَيءٍ وَمَلِيكَهُ، أشْهَدُ أَنْ لاَ إِله إِلاّ أنْتَ، أعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وشِرْكِهِ** دا پـه سحر کې هم وايـه پـه بـيـګـاه کې يـې هم وايـه او چې کـلـه پـه بـسـتـر بـانـدې څملاستې پـه هغـه وخت کې يـې هم وايـه .

---

[1] رواه الـتـرمـذي

## د ځانکدن په وخت کې

د حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ♈ کله سخت بېمار وو او د ځانکدن وخت یې وو نو فرمایل یې : **لا إله إلا الله إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ** او بیا یې لاس ودرولو او ویې ویل : **فِي الرَّفِيقِ الأَعْلَى** چې پدې وخت کې یې روح مبارک قبض شو او لاس یې هموار کړو صلی الله علیه وسلم .[1]

د حضرت معاذ ابن جبل ❽ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : **مَنْ كَانَ آخِرُ كَلاَمِهِ لا إله إلا الله دَخَلَ الْجَنَّةَ** (یعني د چا چې آخري خبره لا إله إلا الله وي هغه به جنت ته ننوزي) .[2]

---

[1] رواه البخاري
[2] رواه أبو داود

# لا إلــه إلا الله عجيب كـلام

لـکه مـخکې چې تـېر شول لا إلـه إلا الله هغـه کـلـمـه ده چې رسول الله ﷺ يـې پـه اړه ويـلـي دي چې دا غوره هغه کلام دی چې نـبـيـانـو وربـانـدې تـلـفـظ کړی دی او د چا چې لـه دنـيـا څخه آخري کلام دا پـه ژبـه راشي نـو الله يـې جنت تـه نـنـباسي دا کـلـمـة الـتوحيد ده ، د مسلمـان او کـافـر پـه مـيـنځ کې فـرق دی ، د جنت کـلی ده ، کـلـمـة الـطـيـبـة ده الله دا کـلـمـه پـه ظاهر سره د جوړښت پـه اعـتـبـار بـانـدې هم ډېـره پـه عجيـبـه ډول جوړه کړيـده او پـه عجيـبـه ډول بـه ولـې نـه وي چې دا کـلـمـه دهغه چا د وحدانـيـت د ښکـاره کـولـو لـپـاره ويـلـه کـيـږي چې د زمکې او اسمانـونـو او ټـولـو مـخـلـوقـاتـو خـالـق دی ددې کـلـمې ظاهري جوړښت تـه چې وګـورو نـو دا کـلـمـه (لا إلـه إلا الله) صرف د دريـو حرفـونـو څخه جوړه شـويـده

۱. الـف
۲. لام
۳. هـا

اول دا خبـره ده چې پـه انـسـانـانـو کې بـه څوک وکـولـی شي چې د دومـره لـويـې مـعـنـی لـرونـکې جمـلـه لـه صرف دريـو ټـکـيـو څخه جوړ کړي؟ او بـيـا چې هغه دری ټـکي هم د څـه خـاصو صفـاتـو لـرونـکي وي د مـثـال پـه تـوګـه :

۱. پـه کـلـمـه کې دری حرفـونـه استعمـال شوي هغه

درى واړه داسې حرفونه دي چې د خولې د ننه اداء کيږي (شفوي حرف پکې نشته) نو همداسې په کار هم ده چې کلمه بايد صرف په شونډو باندې تلفظ نشي بلکه د انسان د ننه څخه (زړه) څخه را وزي او په توجه او اخلاص سره ولوستله شي .

٢. مخکې تېر شول چې بهترين ذکر ويل د لا إله إلا الله دي په هغه وخت کې چې شيطان انسان ته وايي اوس ذکر مه کوه هسې نه خلک به فکر وکوي چې دا خو هسې ريا کوي نو په هغه وخت کې هم د لا إله إلا الله ذکر کول اسان دي او چې څرنګه پکې شفوي حروف نشته نو چې مونږ خوله پټه ونيسو هم مونږ د لا إله إلا الله ذکر کولى شو ځکه دا درى واړه حروف د شونډو د ننه اداء کيږي د شونډو د ښورولو ضرورت پکې نه کيږي .

٣. لا إله إلا الله کلمه د داسې دريو عجيبوحروفو څخه جوړه شوېده چې د ټکي (نقطې) لرونکى حرف پکې نشته .

٤. لا إله إلا الله د دولسو حروفو څخه جوړه شوېده (چې تکرار شوي دي) او زمونږ په عمر کې په هر کال کې دولس مياشتې دي او په مياشتو کې څلور مياشتې ډېرې د قدر وړ دي هغې ته د حرم مياشتې ويل کيږي او په کلمه کې هم څلور حروف ډېر محترم دي چې د الله لفظ تشکيلوي .

د کلمې لا إله إلا الله په جوړښت کې يوه عجيبه خبره دا هم ده چې د ټولې کلمې او د الله د لفظ حروف هماغه درى حرفونه دي د همدې دريو حروفو

څخه (الله) لفظ جوړ شوی دی او د همدې دريو نه ټوله کلمه لا إله إلا الله هم جوړه شوېده .
او دا حروف ددې کلمې د جوړښت لپاره پداسې يو عجيب ترتيب سره مرتب شوي دي چې انسان پکې فکر وکوي دماغ ورته حيران پاتې کيږي زړه او دماغ پخپله دا وايي چې انسان نشي کولی د دريو حروفونو څخه داسې د عجائبو څخه او د دومره لويې معنی لرونکې جمله جوړه کړي يو څو نکتو ته يې ستاسې فام را ګرځوم .
چې کله مونږ کلمه وليکو او تر هر لفظ نه لاندې د هغه لفظ حروف وليکو په لاندې ډول :




نو دا ٤٣٣٢ عدد جوړوي (څنګه چې عددونه واقع دي چې په هماغه ډول يې را واخلې)
دا عدد (٤٣٣٢) مونږ ته په لاس راځي چې کله ١٩ ضرب ١٩ ضرب ١٢ کړو په لاندې ډول

12 X 19 X 19 = 4332

نو اوس که فکر وکوو دا عدد (٤٣٣٢) چې د کلمې د حروفو د ترتيب نه په لاس راغلی وو دا عدد د (١٢١٩١٩) نه هم لاس ته راغلو چې ضرب مو کړو .

اول خو دا عدد ۱۹ عجیب پدې دی چې الله په قرآن کریم کې مونږ ته د سورة محمد په ۱۹ آیة کې دا کلمه را ښودلې ده هلته الله فرمایي :

فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

او له بله اړخه چې دا عدد (۱۲۱۹۱۹) له هر اړخ نه را اخلو نو د (۷) څخه جوړ شوی دی په لاندې ډول .

چې مونږ ۱۷۴۱۷ په ۷ کې ضرب کړو نو همدا عدد په لاس راکوي

17417 X 7 = 121919

او که دا عدد (۱۲۱۹۱۹) مونږ داسې ولیکو (۱۹۱۹۱۲) نو دا هم له اوو څخه جوړ شوی دی چې ۲۷۴۱۶ ځله اوه کېږدو نو همدا عدد جوړوي په لاندې توګه :

27416 X 7 = 191912

او که دا عدد (۱۲۱۹۱۹) مونږ داسې ولیکو (۱۹۱۲۱۹) نو دا هم له اوو څخه جوړ شوی دی چې ۲۷۳۱۷ ځله اوه کېږدو نو همدا عدد جوړوي په لاندې توګه

27317 X 7 = 191219

او اوه هغه عدد دی چې :

- الله قرآن کریم په اوو ژبو باندې نازل کړی دی د حضرت عمر ❽ نه روایت دی هغه فرمایي :

سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا. وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أَقْرَأَنِيهَا. فَكِدْتُ أَنْ

أَعْجَلَ عَلَيْهِ. ثُمّ أَمْهَلْتُهُ حَتّى انصَرَفَ. ثُمّ لَبّبْتُهُ بِرِدَائِهِ. فَجِئْتُ بِهِ رَسُولَ اللّهِ صلى الله عليه وسلم. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّهِ إِنّي سَمِعْتُ هَذَا يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَىَ غَيْرِ مَا أَقْرَأْتَنِيهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللّهِ صلى الله عليه وسلم: أَرْسِلْهُ. اقْرَأْ فَقَرَأَ الْقِرَاءَةَ الّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ. فَقَالَ رَسُولُ اللّهِ صلى الله عليه وسلم: هَكَذَا أُنْزِلَتْ. ثُمّ قَالَ لِيَ: اقْرَأْ فَقَرَأْتُ. فَقَالَ: هَكَذَا أُنْزِلَتْ. إِنّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ. فَاقْرَأُوا مَا تَيَسّرَ مِنْهُ.

ترجمه : ما د حضرت هشام ابن حکيم بن حزام نه واورېدل چې سورة فرقان يې تلاوت کولو په داسې طريقه چې ما په هغه ډول نه تلاوت کولو او ماته رسول الله ♈ را ښودلی وو نېږدې وم چې د تلاوت په وخت کې مې په ده باندې عجله ورکړې وای بيا مې ورته صبر وکولو چې ده تلاوت ختم کړو بيا مې د څادر تر څنډه را ونيولو رسول الله ♈ ته مې راوستلو ورته مې وويل : يا رسول الله ♈ ما دده څخه سورة الفرقان واورېدو تا چې ماته کومه طريقه ښودلې ده دی يې د هغې طريقې نه په بدله طريقه وايي رسول الله ♈ راته وويل : دی پرېږده چې تلاوت يې کړي ما هغه پرېښودو نو ده په هماغه ډول تلاوت شروع کړو په کومه طريقه چې ما ورڅخه آوردلی وو رسول الله ♈ وويل همداسې نازل شوی دی بيا رسول الله ♈ ماته وويل اوس يې ته تلاوت کړه بيا ما تلاوت کړو رسول الله ♈ وويل : همداسې نازل شوی دی بېشکه دا قرآن

کریم په اوو ژبو (لهجو) نازل شوی دی په کومه چې درته اسانه وي په هغه ډول يې تلاوت کړه .

⇦ الله ➢ اسمانونه اوه پيدا کړي دي الله ➢ په سورة الملک کې فرمايي :

الَّذِیۡ خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا [1]

ترجمه : هغه الله ➢ چې پيدا کړي يې دي اوه اسمانونه طبقې طبقې لاندې باندې .

په حديث کې دي چې د يوه اسمان د پاسه بل اسمان او د هغه د پاسه بل اسمان او همداسې يو په بل د پاسه اوه اسمانونه واقع دي . [2]

الله ➢ زمکې هم اوه پيدا کړې دي الله ➢ فرمايي :

اَللّٰہُ الَّذِیۡ خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ وَّ مِنَ الۡاَرۡضِ مِثۡلَہُنَّ [3]

ترجمه : الله ➢ هغه ذات دی چې پيدا کړي يې دي اوه اسمانونه او (پيدا کړي يې دي) له زمکې څخه هم په مثل ددې (اوه اسمانونه اوه زمکې) (کابلی تفسير)

نو الله ➢ چې د زمکو او اسمانونو خالق دی هغه د خپل وحدانيت د ښکاره کولو لپاره پداسې اسرارو باندې مشتمله پورتنۍ کلمه تعين کړيده

1 سورة الملک آية ۳
2 کابلی تفسير
3 سورة الطلاق آية ۱۲

چې د حروفو ترتیب یې هم په هغه ډول دی چې د اوو (۷) عدد نه تشکیل کیږي .

کله چې د لا إله إلا الله سره محمد رسول الله ♈ هم وتړله شي نو دا هم بیا اوه کلمې شي .

لا إله إلا الله محمد رسول الله پوره کلمه څلورویشت حروف کیږي دا چې څوک په ۲٤ ساعتونو کې وایي امید دی چې الله ➢ به یې د یو حرف په برکت د یو ساعت ګناهونه معاف کړي .

له بله پلوه چې مونږ د لا إله إلا الله لفظ ته وګورو پدې کې اوله کلمه (لا ) دوه حرفونه لري او آخره کلمه الله څلور حرفونه لري

لا اله الا الله

۲ ٤

دا دواړه عددونه چې څنګ په څنګ سره کیږدو نو ٤۲ عدد جوړوي او دا ٤۲ هم د اوو څخه جوړ شوی دی چې مونږ ٦ ځله اوه کېږدو نو دا عدد جوړوي (٤۲) په لاندې ډول

$6 X 7 = 42$

او دا ٦ او ۷ هغه دوه عددونه دي چې الله ➢ دواړه په یو ځای په یوه آیت کې په قرآن کریم په ډیر لوی ځای کې ذکر کړي دي او فرمایلي یې دي چې الله ➢ هغه ذات دی چې اوه اسمانونه یې په شپږو ورځو کې پیدا کړي دي دا هم یوه عددي باریکي ده په دې مبارکه کلمه کې .

محمد رسول الله

دا د اسلام د مبارکې کلمې (کلمه طیبه) دوهمه برخه ده او څوک چې د اسلام په مبارک دین کې داخلېدل غواړي نو دا کلمه به وايي او يقين به هم وربانديې کوي د کلمې مبارکې په اوله برخه بانديې تفصيلي بحث تېر شو د رسول الله ♈ په اړه زمزم يو ځانګړی کتاب خپور کړی دی دلته هغه خبرې بيا نه راګرځوم دلته صرف د موضوع د تکمېل لپاره يو څو خبرې په کلمه کې ددې برخې په اړه کول غواړم

نو چې څوک دا کلمه وايي نو هغه به ددې تصديق هم کوي چې رسول الله ♈ هرڅه ويلي دي هغه رښتيا دي او په هره خبره يې چې امر کړی دی په مسلمانانو يې اطاعت لازم دی او هغه څه چې ده ثابت کړي وي نو مسلمان به هغه شی مثبت مني او کوم شی چې ده ♈ نفی کړي دي هغه به منفي مني بغير ددې چې د خپل عقل له لوري ورته وګوري او يا دا فکر وکوي چې د رسول الله ♈ دا فيصله د عقل خلاف ده او رسول الله ♈ چې کوم شي ته حلال ويلي وي هغه حلال دي او کوم شي ته چې رسول الله ♈ حرام ويلي وي هغه حرام دي پدې اړه د انسانانو فکرونه او رايه کار نه ورکوي او الله

➢ په سورة الانعام او الاعراف کې او په مختلفو نورو ځايونو کې د مشرکانو ذم پدې وجه

ويـلـى دى چې دوى بـه پـخپـلـه خـوښه يـو شى ځـان تـه حلال كـول او حرام كـول الله ➢ رسـول الله ♈ تـه فـرمـايـي :

يٰاَيُّهَا النَّبِىُّ اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيۡرًا ﴿۴۵﴾ وَّ دَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذۡنِهٖ وَ سِرَاجًا مُّنِيۡرًا ﴿۴۶﴾ [1]

تـرجـمـه: اى نـبـي بـېشكـه مـونـږ لـېږلـى ئـې تـه شاهـد (پـه هغـه چـا چې ور لـېږلـى شـوى ئـې) او زيـرى وركـونـكى (پـه نـعـمـتـونـو او جـنـت سره مـؤمـنـانـو تـه) او ويـرونـكى (لـه اور د دوزخ څخه كـافـرانـو تـه) او بـلـونـكى (د خلقـو عبـادت د) الله ➢ تـه پـه اجـازه د (الله ➢ ) او ډيـوه رڼـا كـونـكى.

يـعـين رسـول الله ♈ دنـيـا تـه ددې لـپـاره راغلـى دى چې خـلـكـو تـه تـوحيـد ور وښيـي او خـلـك د الله ➢ وحدانـيـت خـوا تـه لـه بـت پـرسـتـي او شرك څخه را كـش كـړي او ددې سره سره پـه خـلـكـو بـانـدې شاهـد او ګـواه اوسي او پـه قـيـامـت كې بـه هم د امـتـيـانـو پـه حق كې ګـواهي وركـوي چې چـا د الله ➢ پـيـغـام څومـره مـنـلـى وو او دا چې د الله ➢ لـوري تـه دعـوت كـوي دا د الله ➢ پـه اجـازه سره نـو دده اطاعت كـول لازم دي ځكـه دى لـه خپـلـه ځـانـه نـه دى لـګـيـا بـلـكـه الله ➢ ورتـه ددې اجـازه كـړيـده چې د هغـه

[1] سورة الاحزاب آيـة ٤٥ او ٤٦

➢ لور ته خلک ور وغواړي او هغه څوک چې د الله نه بغير بل لوري ته د بل چا عبادت ته څوک ور وغواړي نو دا شرک دی او که څوک د الله ➢ لوري ته په داسې طريقه څوک ور وغواړي چې الله ➢ دهغې طريقې اجازه نه وي کړې نو دېته بدعت وايي او هغه هم ناروا دی .

نو په لنډو ټکو کې چې څوک ددې ګواهي ورکوي چې محمد د الله ➢ رسول دی نو هغه به يې په هغه څه کې اطاعت کوي چې رسول الله ♈ وربانديې امر کوي او رسول الله ♈ چې کومې خبرې کوي نو دی به يې تصديق کوي او له کوم شي نه چې رسول الله ♈ منع کوي نو دی به هغه کار ته نه ور نږدې کيږي له هغه څخه به د رسول الله ♈ د نهی مطابق ځان ساتي .

او همدا کارونه چې په رسول الله ♈ باندې ايمان راوړل شي او هغه ومنل شي چې د الله ➢ بنده او رسول دی او الله ➢ دخلکو د هدايت لپاره خلکو ته را لېږلی دی کوم کارونه چې ده ♈ ثابت کړي دي هغه ثابت او کوم يې چې منع کړي هغه ممنوع دي اطاعت يې په هر مسلمان باندې واجب دی پدې سره د ايمان تکميل کيږي ترڅو چې پدې باندې يقين ونشي نو ايمان نشي پوره کېدلی .

د رسول الله ♈ په تصديق کې درې خبرې دي :

## لمړۍ خبره

د هغه ♈ د نبوت منل او دا منل چې هغه د الله

➢ څخه مونږ ته هرڅه راوړي دي دا ټول رښتيا دي او هېڅ فيصدي پکې داسې نشته چې هغه رسول الله ♈ مونږ ته له خپله ځانه ويلي وي او دا منل هم د ايمان برخه ده چې رسول الله ♈ په حقه پيغمبر دی .

د رسول الله ♈ په پيغمبري کې په لاندې خبرو باندې ايمان راوړل ضروري دي :

۱. رسول الله ♈ د کومې خاصې قبيلې او قوم لپاره نه بلکه د ټولې دنيا د انسانانو او پېريانو لپاره راغلی وو .

۲. رسول الله ♈ آخري پيغمبر دی او دده په پيغمبري سره د پيغمبرانو د راتلو سلسله پای ته ورسېده او ددېنه وروسته بل پيغمبر نه راځي .

۳. د رسول الله ♈ پيغمبر کېدل د پخوانيو ټولو دينونو نسخ کونکی دی او د رسول الله ♈ د پيغمبر کېدلو نه وروسته د پيغمبر په توګه صرف د رسول الله ♈ اطاعت اسماني دين دی او پخواني دينونه لکه يهوديت او نصرانيت اوس د

دین حیثیت نلري او تابعداري کونکی یې د هدایت په لاره نه دی .

٤. پدې باندې هم ایمان راوړل ضروري دي چې رسول الله ♈ د پیغمبري حق پوره کړی دی هغه په سمه توګه خلکو ته تبلیغ کړی دی او څومره شی چې د الله ➢ له لوري ورته ورکړل شوي وو چې خلکو ته یې را وړي هغه یې راوړي دي خپل مسئولیت یې په سمه توګه پوره کړی دی او خپل امت یې په داسې ښکاره لاره باندې پرېښی دی چې شپه یې لکه د ورځې داسې رڼا ده (الله ➢ د زمونږ او ټول امت له لوري نه ورته اجر عظیم ورکړي او الله یې دې مقام محمود ته ورسوي صلی الله علیه وسلم) .

٥. رسول الله ♈ له ماشوم توب نه تر وفات پورې ګناه نه ده کړې او هغه معصوم دی ♈ .

٦. الله ➢ چې ورته کوم صفتونه کړي دي هغه ټول رښتیا دي او په امت باندې یې چې څومره حقونه دي هغه ټول حق دي په امت باندې یې پوره کول واجب دي .

## دوهمه خبره

هغه څه چې رسول الله ♈ د الله ➢ له لوري نه راوړي دهغې ټولو تصدیق کول هغه که د پخوانیو امتونو قصې دي او که د راتلونکې په اړه وړاندې ویل دي ، که دکوم شي په حلال والي

بـانـدې حکم دی او کـه د کـوم شي پـه حرام والـي بـانـدې فـيصلـه کـول دي او پـدې بـانـدې ايـمـان راوړل ضروري دي چې دا هرڅـه ده د الله ➢ لـه لـوري نـه راوړي دي او دده ♈ لـه لـوري نـه پـکـې هېڅ خبـره نـشتـه الله ➢ درسول الله ♈ صفـايـې کـوي او فـرمـايـي :

وَ مَا يَنۡطِقُ عَنِ الۡهَوٰی ؕ(۳) اِنۡ هُوَ اِلَّا وَحۡیٌ يُّوۡحٰی ۙ(۴) [1]

تـرجمـه : او خبـرې نـه کـوي (محمد) لـه هوا (خپـلـې) نـه نـه دی دغه (قـرآن) مګر وحی ده چې ورتـه لـېږلـې شوېـده .

يـعـنـي د رسول الله ♈ د مبـارکـې خولـې نـه داسې کـوم يـو تـوری هم نـه دی وتـلـی چې هغـه دده ♈ د نـفس پـه تـقـاضا بـانـدې بـنـاء وي بـلـکـه ده ♈ چې پـه ديـنـي مـعـامـلـو کـې کـوم شی فـرمـايـلـي دي هغـه ورتـه د الله ➢ لـوري نـه وحی شوېـده او هغـه هرشی د الله ➢ لـه احکـامـو سره سم دي لـکـه هغـه چې مـتـلـو وحی ده (هغـه پـه مـانـځـه کـې تـلاوت کـيـږي او بـغـيـر د مـانـځـه نـه يـې هم پـه تـلاوت بـانـدې ډېـر ثـواب وي) نـو هغې تـه قـرآن ويـل کـيـږي او هغـه چې غيـر مـتـلـو وحی ده (چې پـه مـانـځـه کـې نـه تـلاوت کـيـږي او د مـانـځـه نـه بـهـر يـې هم پـه تـلاوت بـانـدې هغـه ثـواب

[1] سورة الـنجم آيـة ۳

نه وي کوم چې د قرآن وي) نو دېته حديث ويل کېږي .

د شرح العقيدة الطحاوية مصنف رحمه الله فرمايي : يجب على كل أحد أن يؤمن بما جاء به الرسول إيماناً عاماً مجملاً، ولا ريب أن معرفة ما جاء به الرسول صلى الله عليه وسلم على التفصيل فرض على الكفاية.

ترجمه : په هر فرد باندې واجب دي چې په هغه څه باندې ايمان راوړي چې رسول الله ♈ د الله ➢ له لوري نه راوړي دي ايمان مجمل او د هغه څه چې ده ♈ راوړي دي تفصيل پېژندل فرض کفايي دي (چې ځينې يې زده کړي د نورو غاړې ورباندې خلاصيږي) .

## دريمه خبر

د رسول الله ♈ اطاعت کول او د رسول الله ♈ د شريعت متابعت کول هم لازم دي لکه څرنګه چې مخکې تېر شول چې ددې ګواهي ورکولو سره چې محمد د الله ➢ رسول دی دا هم ضروري ده چې څه شی رسول الله ♈ له الله ➢ نه راوړي دي دهغې د رښتيا والي تصديق کول هم لازم دي همدارنګه ددې سره په هغه قوانينو او شريعت چې رسول الله ♈ راوړي دي د عمل کولو عزم هم ضروري دی پدې اړه الله ➢ فرمايي :

وَ مَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوۡلُ فَخُذُوۡهُ * وَ مَا نَهٰىكُمۡ عَنۡهُ فَانۡتَهُوۡا ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ ۘ(٧) [1]

ترجمه : او هغه څه چې درکړي تاسې ته رسول (د الله ➢ ) نو وائې خلئ وئې نيسئ قبول ئې کړئ او هغه څه چې منع کوي (رسول الله ♈ ) تاسې له هغه څخه نو بېرته شئ ترې (مه ئې غواړئ) او ووېرېږئ له (عذاب د) الله ➢ په ځان ساتلو له ګناهونو بېشکه الله ➢ سخت دى عذاب (دده ➢) .

الله ➢ پدې آيت کې د رسول الله ♈ په اطاعت باندې او هرڅه چې رسول الله ♈ وربانديې امر کړى دى د هغه په منلو او چې رسول الله ♈ ورڅخه منع کړيده د هغه څخه د ځان په ساتلو باندې امر کړى دى نو اوس که څوک د رسول الله ♈ نا فرماني کوي دا د الله ➢ نا فرماني ده .[2]

---

[1] سورة الحشر آية ٧

[2] **کابلى تفسير**

# په رسول الله ﷺ باندې ایمان

لکه چې د مسلمان کېدلو لپاره په الله ➢ باندې
ایمان فرض وو (له پوره تفصیل سره مخکې پدې
اړه ډېرې موضوع ګانې تېرې شوې) په همدې ډول
په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړل هم د الله ➢
له لوري فرض کړل شوي دي پدې اړه الله ➢ په
قرآن کریم کې فرمایي :
سورة الحدید آیة ۷

اٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ وَ اَنۡفِقُوۡا مِمَّا جَعَلَكُمۡ مُّسۡتَخۡلَفِيۡنَ فِيۡهِ ؕ فَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡكُمۡ وَ اَنۡفَقُوۡا لَهُمۡ اَجۡرٌ كَبِيۡرٌ (۷)

ترجمه : ایمان راوړئ تاسې (او په ایمان
همېشه اوسئ) په الله ➢ او په رسول د دغه (الله
➢ ) باندې او لګوئ (په لاره د الله ➢ کې) له
هغو (اموالو) څخه چې ګرځولي يئ تاسې (الله ➢ )
خلیفه ګان (د پخوانیو) په هغو (اموالو) کې
پس هغه کسان چې ایمان ئې راوړی دی له تاسې او
لګولي ئې دي (اموال خپل په لاره د الله ➢ کې)
هغوی لره دی اجر او ثواب ډېر لوی (په جنت کې
نو تاسو ته هم رسوي نفع ایمان او خرڅول د
اموالو د تاسې)

په پورتني آیت کې الله ➢ په ښکاره سره فرمایي
چې ایمان راوړئ په الله ➢ او دهغه په رسول .

په بل ځای کې الله ➢ فرمايي :

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ النُّوْرِ الَّذِیْٓ اَنْزَلْنَا ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ (٨) [1]

ترجمه : نو ايمان راوړئ په الله ➢ او په رسول د ده (محمد) باندې او په هغې رڼا (قرآن) باندې چې نازل کړي دي مونږ او الله ➢ په هغه څه چې کوئ ئې تاسې ښه خبر دار دی (نو جزاء به درکړي)

په پورتني آيت کې الله ➢ حکم کړی دی چې په الله ➢ او دهغه په رسول باندې ايمان راوړئ او بيا يې په آخر کې ويلي دي چې الله ➢ په هغه څه باندې خبر دی چې تاسې يې کوئ اشاره يې پکې ديته کړېده چې د ايمان سره عمل هم ضروري دی .

په بل ځای کې الله ➢ فرمايي :

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ الْكِتٰبِ الَّذِیْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَ الْكِتٰبِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَ مَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ كُتُبِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا (١٣٦) [2]

---

1 سورة التغابن آية ٨

2 سورة النساء آية ١٣٦

ترجمه : ای مؤمنانو ثابت اوسئ او خالص کړئ تاسې ایمان (یقین) خپل پر الله ➢ او رسول د ده (محمد) او په هغه کتاب (قرآن) چې ټوټه ټوټه یې نازل کړی دی په رسول خپل (محمد ♈) باندې او پر هغه کتاب چې ټول یې یو ځل نازل کړی دی پخوا (له قرآنه پر نورو رسولانو ) او هرڅوک چې کافر شي پر الله ➢ او پر ملائکو (پرښتو) د د غه (الله ➢ ) او پر کتابونو د دغه (الله ➢ ) او پر رسولانو د دغه (الله ➢ ) او پر ورځې آخرې (چې قیامت دی) نو په تحقیق گمراه شوي دي په گمراهي لرې سره (له حقه) .[1]

یعني هرڅوک چې ایمان راوړي نو ضروري دي چې د الله ➢ پر ټولو احکامو او ارشاداتو د زړه یقین ولري که د الله تعالی له احکامو او ارشاداتو ځنې پر یوه حکم هم یقین ونه کړي نو هغه مسلمان نه دی او تش د ژبې وینا او د خولې اظهار هېڅ کوم اعتبار نه لري.

## د رسول الله ♈ سره مینه

د اشهد ان محمد رسول الله د ویلو سره لکه چې لازمه ده چې د زړه نه به په رسول الله ♈ باندې ایمان راوړي په همدې ډول لازمه ده چې د هغه ♈ سره به د زړه مینه کوي هغه مینه چې کومه دده

[1] کابلی تفسیر

په اختیار کې ده او هغه مینه چې د انسان په اختیار کې نه ده لکه یوه لوري ته د زړه میلان نو الله ➢ په هغه مینه سره انسان نه نیسي او هغه مینه چې په اختیار کې ده د مثال په ډول که چېرته د رسول الله ♈ حکم د بل چا د حکم سره ټکر شي نو د رسو الله مینه به تا دېته مجبور کړي چې د بل چا حکم پرېږدې او د رسول الله ♈ خبره ومنې په همدې ډول چې د رسول الله ♈ او یا ستا د کوم خپلوان دواړو سره خبرې ټکر شي نو ته به د رسول الله ♈ خبره منې دا هغه مینه ده چې زمونږ په اختیار کې ده الله ➢ د رسول الله ♈ سره د مینې په اړه فرمايي : **قُلْ اِنْ كَانَ اٰبَآؤُكُمْ وَ اَبْنَآؤُكُمْ وَ اِخْوَانُكُمْ وَ اَزْوَاجُكُمْ وَ عَشِيْرَتُكُمْ وَ اَمْوَالُ ۨاقْتَرَفْتُمُوْهَا وَ تِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَ مَسٰكِنُ تَرْضَوْنَهَاۤ اَحَبَّ اِلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ جِهَادٍ فِيْ سَبِيْلِهٖ فَتَرَبَّصُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ (٢٤)** [1]

ترجمه : ووایه (ای محمده! عذر ویونکو ته د هجرت له ترکه) که وي پلرونه ستاسې او زامن ستاسې او ورونه ستاسې او ښځې ستاسې او خپلوان ستاسې او هغه مالونه چې ګټلي دي تاسې هغه او (هغه) تجارت چې وېرېږئ تاسې د نه چلېدلو

---

[1] سورة التوبة آية ٢٤

دهغې او هغه ځایونه د هستوګنې چې خوښوئ تاسې هغه ډېر محبوب تاسې ته له الله ➢ نه او له رسول د الله ➢ نه او له جهاده په لاره د الله ➢ کې (لپاره د ترقي د دین) نو انتظار کوئ تاسې تر هغه پورې چې راولي (را ولیږئ) الله ➢ امر (حکم د عذاب) خپل او الله ➢ نه شیي سمه لاره د فاسقانو قوم ته .

په پورتني آیت کې الله ➢ فرمایي که د الله تعالی او د رسول الله ♈ د احکامو په اطاعت او د هجرت او جهاد په کولو کې دغه خیال تاسې ته مانع وي چې کور ، کورنۍ او کهول مو پاتې کیږي او هغه ضائع کیږي او تجارت مو بندیږي د راحت او آرام ځایونه راڅخه پاتې کیږي نو بیا د الله ➢ له لوري د هغه عذاب انتظار وکوئ چې په داسې لټانو او دنیا طلبانو باندې راځي .[1]

---

[1] کابلی تفسیر

مـــا خـذ ونـــه

1-التاريخ الإسلامي مواقف وعبر، د. عبد العزيز الحميدي، دار الدعوة، الإسكندرية.
2- السيرة النبوية دروس وعبر، د. مصطفى السباعي، المكتب الإسلامي، بيروت، لبنان، الطبعة التاسعة، 1406هـ - 1986م.
3- السيرة النبوية، لأبي محمد بن عبد الملك بن هشام، دار الفكر.
4- السيرة النبوية عرض حقائق وتحليل أحداث د.على محمد الصلابي الطبعة الأولى.
5- السيرة النبوية الصحيحة، د. أكرم العمري، الطبعة الأولى 1412هـ/ 1992م، مكتبة العلوم والحكم بالمدينة المنورة.
6-السيرة النبوية في ضوء المصادر الأصيلة:الدكتور مهدي رزق الله أحمد ط1-1412ه مكتبة الملك فيصل.
7- السيرة النبوية مواقف وعبر :الدكتور عبد العزيز بن عبد الله الحميدي ط2 دار الدعوة .
8-القيادة العسكرية في عهد الرسول ﷺ ، دار القلم، الطبعة الأولى، 1410هـ- 1990م.
9- تفسير القرطبي، لأبي عبد الله القرطبي، دار إحياء التراث العربي، بيروت، لبنان، 1965م.
10- سير أعلام النبلاء: شمس الدين الذهبي، مؤسسة الرسالة، الطبعة الأولى، 1403هـ.
11- صور وعبر من الجهاد النبوي في المدينة، تأليف: د. محمد فوزي فيض الله، دار القلم، دمشق، الدار الشامية، بيروت، الطبعة الأولى، 1419هـ- 1996م.
12- صحيح السيرة النبوية، إبراهيم العلي، دار النفائس، الطبعة الثالثة، 1408هـ -1998م.
13- صحيح البخاري، محمد إسماعيل البخاري، دار الفكر، الطبعة

الأولى، 1411هـ - 1991م.
14- على خطى الحبيب :عمرو خالد
17- فقه السيرة النبوية :الدكتور محمد سعيد رمضان البوطي ط11 1991م
18- من معين السيرة، صالح أحمد الشامي، المكتب الإسلامي، الطبعة الثانية، 1413هـ- 1992م.
19- فقه السيرة النبوية، منير الغضبان، معهد البحوث العلمية وإحياء التراث مكة المكرمة.
20- شرح النووي على صحيح مسلم للإمام النووي المتوفى 676هـ - طبع المطبعة المصرية ومكتبتها – القاهرة عام 1347هـ.
21-البداية والنهاية، أبو الفداء ابن كثير الدمشقي. دار الريان للتراث.
22- غزوة بدر الكبرى الحاسمة، محمود خطاب.
23-غزوة بدر الكبرى، محمد أبو فارس، دار الفرقان، الطبعة الأولى، 1402هـ- 1982م.
24- غزوة بدر الكبرى، محمد أحمد باشميل، طبعة دار الفكر، الطبعة السادسة، سنة 1394هـ
25-فتح الباري، ابن حجر العسقلاني، دار المعرفة، بيروت، لبنان.
26- الدر المنثور في التفسير بالمأثور، الإمام السيوطي، الناشر محمد أمين دمج، بيروت، لبنان.
27-زاد المعاد في هدي خير العباد، أبو عبد الله ابن القيم حققه: شعيب الأرناؤوط وعبد القادر، الطبعة الأولى، 1399هـ، دار الرسالة.
28-السيرة النبوية في ضوء القرآن والسنة، محمد أبو شهبة، دار القلم، دمشق، الطبعة الثالثة، 1417هـ - 1996م.
٢٩-المستفاد من قصص القرآن للدعوة والدعاة، عبد الكريم زيدان، مؤسسة الرسالة، الطبعة الأولى، 1418هـ- 1997م.
3٠- طبقات ابن سعد الكبرى، محمد بن سعد الزهري، دار صادر، ودار بيروت للطباعة والنشر، 1376هـ- 1957م.

٣1- المغازي للواقدي، محمد عمر بن واقد المتوفي 207هـ، تحقيق د. مارسدن جونس، عالم الكتب، بيروت، الطبعة الثالثة، 1404هـ- 1984م
٣2- القيادة العسكرية في عهد الرسول ﷺ، دار القلم، الطبعة الأولى، 1410هـ- 1990م.
٣3- إمتاع الأسماع بما للرسول من الأبناء والأموال والحفدة والمتاع، للشيخ أحمد المقريزي، صححه وشرحه محمود محمد شاكر، مطبعة لجنة التأليف والترجمة بالقاهرة 1941م.

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله
پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې ایښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال
پښتو

10. ادیان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه
فارسي

15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او
پېژندنه پښتو

18. د اسلامي تاریخ له پانو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاریخ له پانو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاریخ له پانو څخه دریم
پښتو

21. د اسلامي تاريخ له پانو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پانو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پانو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پانو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پانو څخه لسم پښتو
28. د فقهي كتابونو له پانو څخه اول پښتو
29. د فقهي كتابونو له پانو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي كتابونو له پانو څخه دريم پښتو
31. د فقهي كتابونو له پانو څخه څلورم پښتو

32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم پښتو

33. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم پښتو

34. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي

35. قرآني معلومات لمړۍ برخه پښتو

36. کلمه طيبه ستاسې په لاس کې